


# كمالات

پښتو شرح د

# مرقات




تصنيف
مولانا فضل امام صاحب
خیر ابادیؒ

شارح
مولانا افتخار علی صاحب
مدرس دار العلوم دیوبند



مکتبہ رحمانیہ
محلہ جنگی قصہ خوانی پشاور
091-2550627
0302-6209815

**نام کتاب**: کمالات شرح مرقات

**مؤلف**: مولانا افتخار علي صاحب

**تــرجمه**: ابو هلال /عبد الخالق،خَرِيْجُ الجَامِعَة اِمْدَادُ الْعُلُوْمِ الْإِسْلَامِيَّةْ پِشَاوَر/ وفاضل وفاق المدارس العالمية (ایم اے اسلامیات) رابطه نمبر ۰۳۳۳۹۱۲۱۱۹۶

سال اشاعت: ۲۰۱۶

**تعداد**: ۱۰۰۰

**ناشر**: مکتبه رحمانیه قصه خواني پشاور

# فهرست مضامين

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

## شروع کوم په نامه دالله چه بخښونکے او مهربانه دے.

زه شروع او اغاز کوم ددي کتاب په داسي حال کښي چه په شروع او اخر کښي دالله تعالي نوم نه هميشه برکت حاصلوم او دا داسي ذات دي چه په دنياکښي هر چاته دنعمتونو ورکوونکي دي او مومنانو ته په اخرت کښي هم نعمتونو ورکوونکي دي دشروع نه بسم الله او په اخر کښي الحمدلله مصنف خپل کتاب شروع کړي دي او دا پـه وجـه داتبـاع دقـران پـاك او اقتداء په حديث درسول الله او دويمه وجه داده چه دتصنيف او تاليف كار دومره اسان نه دي ترڅو پوري چه دمسائلو القاء دالله تعالي دطرفه نه وي شوي نو مصنف هغي پوري څه نشي ليکلي نو ددي دپاره دبنده د طرفـه دالله تعالي شکريه اونذرانه پيش کول ضروري دي نو ددي دپاره دبنـده شـکريه او نذرانه پيش کول دالله تعالي په درگاه کښي ضروري دي او پـه اخـلاص سره الحمدلله دزړه نه اووائي ولله الحمد اودا اولا او اخر او ظاهرا او باطنا .

اَلْحَمْدُ (١) لِلّٰهِ (٢) الَّذِيْ اَبْدَعَ (٣) الْاَفْلَاكَ (٤) وَالْاَرْضِيْنِ (٥)

تول ثنا اوصفت هغه الله تعالي لره دي كوم چه اول اسمانونه او زمكي پيدا كړي دي

وَالصَّلَاةُ (٦) وَالسَّلَامُ عَلٰي مَنْ كَانَ نَبِيًّا (٧) .

اونزول درحمت دے وي په هغه چاچه نبي او پيغمبر وو.

(١) قوله الحمد لله په احمد کښي الف لام دجنس دپاره هم کيدي شي او استغراق دپاره هم کيدي شي او څنو علماؤ اول ته ترجيح ورکړي ده ځکه چه مطلق دلالت په ماهيت دحمد باندي دلالت کوي په کوم چه انطباق

علي جميع الافراد ملحوظ نه وي همدارنګه د لام جنس نه همدغه متبادر وي او ځنو حضراتو دويم ته ترجيح ورکړي ده ځکه چه دا ټولو افرادو ته شامل ده ځکه چه ټولو افرادو دمدخول ته يې فائده ورکړي د حمد معني الثناء بالجميل علي جهةالتعظيم سواء تعلق بالنعمة وَغَيْرِهَا ،ده، يعني دڅا صفت بيانول په ژبي سره دهغه خوبي بيانول کوم چه اختياري وي مګر تعريف چه دتعظيم دپاره په نعمت پوري متعلق وي او که نه وي او دژبي په قيد سره شکر خارج شو ځکه چه هغه بيا صرف په ژبه سره نه کيږي بلکه دزړه سره هم متعلق وي او دجوارحو سره هم متعلق وي او داختيارقيدسره داخارج شو ځکه چه هغه کښي اختياري او غير اختياري دواړه برابر دي ددي وجه دا ويل مدحت الؤلؤ علي صفا ئها،وه يعني مادملغلرو صفت ددوي دصفائي په وجه اوکړو ويل کيدي شي او ديته حمد نشي ويل کيدي ځکه چه دملغلرو صفايي ده په اختيار کښي نده ددي تحقيق نه دا معلومه شوه چه مدحه عام ده او حمد خاص دي مګر ځني محقيقينو ددي سره اختلاف کړي دي دوي دا فرمائيلي دي چه دمدح پشان حمد هم غير. اختياري سره متعلق کيدي شي لکه دغه شان عسي ان يبعثك ربك مقاما محمودا ، او دا دعا پس داذان نه دي وابعثه مقاما محمودا الَّذِيْ وعدته او شکر هغه فعل ته ويل کيږي په کوم چه دمنعم دتعظيم د اظهار په وجه وي برابر ده چه دژبي په فعل سره وي يا دزړه يا دنورو اعضاؤ، ددي نه دا معلومه شوه چه په حمد او شکر کښي عُمُوْمٌ وَخُصُوْصٌ مِنْ وَجْهٍ نسبت دي کوم چه مونږ پدي نقشه کښي پيش کوو:

دشارح مطالع په تحقیق حمد د شکر نه عام دي.

| حمداوشکردواړه | چه کله دچا داحسان په مقابل کښي په ژبه تعریف وي | اجتماعي ماده |
|---|---|---|
| صرف شکر | چه کله دکوم احسان په مقابل کښي په جوارحو تعریف وي | افتراقي ماده من جهة الشکر |
| صرف حمد | چه کله دچا دعلم یا شجاعت په ژبه تعریف وي | افتراقي ماده من جهة الحَمْدُ |

(۲)قوله "لله" پدي کښي لام جاره داختصاص دپاره دي لکه پدي قول کښي الجل للفرس او لفظ الله علم دهغه ذات واجب الوجود دي کوم چه دټولو صفات کمالیه جامع دي او ځني محقیقین دا وائي چه لفظ الله اسم دي علم نه دي او دا دقاضي بیضاوي رجحان دي چه دا وصف دي مګر پدي علمیت غالب شوي دي.

(۳) قوله" ابدع" دا لفظ دابداع نه دصیغي په لحاظ ماضي مطلق ده دکوم شي بي مثاله جوړولو ته وائي مګر دا يي لغوي معني ده او په اصطلاح کښي چه يو شي دعدم او بغير دمادي نه وجود ته راوړي ديته ابداع ويل کيږي.

(٤)قوله "الافلاك" دا د فلك جمع ده په معني داسمان پدي عبارت کښي دقران کريم دي ايت ته اشاره ده بديع السماوات والارض ، ترجمه الله تعالي هغه ذات دي کوم چه اوه اسمانونه او اوه ځمکي بغير دمادي نه پيدا کړي دي، سموات په منزله دپلرونو دي او الارض په منزله دميندو دي.

(٥)قوله " الارضين "الارضين د ارض اسم جمع او ارض اسم جنس دي په اصل کښي رضة دي په په دليل تصغير سره يعني اريضة الارضين جمع يي

روارہ څکه چه داسمانونو پشان زمکې هم اوه دي کَمَاقال تعالي الله الَّذِيْ خلق سبع سماوات ومن الارض مثلهن ددي تحقيق په رساله تهذيب الناس کښې مَوْجُوْدُ دي.

(٦)قوله " والصلاة " صلوة په لغت کښې په معني د دعا دي او رحمت او استغفار او دتعريف په معني سره دي او ددي فرق داسې ظاهريږي چه کله ددي نسبت الله تعالي ته وکړې شي نو ددي نه مراد رحمت وي او کله چه دمومنانو بندګانو طرف ته وکړې شي نو دصلوة معني طلب درحمت او دعا ده او کله چه فرشتو ته منسوب شي نو معني استغفار ده نو دلته په رسول الله دصلاة معني نزول درحمت دي، مطلب داچه نزول دصلاة دي وي په رسول د الله چه کله په عالم ارواح کښې نبي وو، او ادم عَلَيْهِ السلام لا نوو پيدا شوي، او په رسول الله به دالله دطرفه نزول درحمت کامله کيدو،

او په دنيا کښې به ستا ذکر اوچت وو او ستا شريعت به ترقيامته پورې جاري وي او ستا په قيامت کښې دګناګارانو امتيانو دپاره او ددوي د درجو اوچتولو دپاره شفاعت قبلولې شي، او ددوي نيکي په څو چنده زياتولو کښې به ستا شفاعت مقبول وي ،امين ثم امين.

(٧)قوله "نبيا" نبي او رسول هغه انسان ته ويل کيږي کوم چه دالله تعالي دطرفه داحکامو رسولو دپاره راليږلې شوي وي څني حضرات رسول خاص او نبي عام وائي وتفصيله في المطولات.

| وَآدَمُ بَيْنَ(١) الْمَاءِ وَالطِّيْنِ، وَعَلٰي اٰلِهِ(٢) وَاَصْحَابِهِ (٣) |
|---|
| کوم وخت کښې چه ادم داوبو اوختي مينځ کښې وو، او په اهل ده دے وي |

اَجْمَعِيْنَ . اَمَّابَعْدُ (٤) : فَهٰذِهٖ (٥) عِدَّةُ فُصُوْلٍ

او دده په ملګرو دے وي اويه ټولو مومنانو دے وي، وروسته ددے نه دا يوڅو فصلونه

فِي عِلْمِ الْمِيْزَانِ لَابُدَّ مِنْ حِفْظِهَا وَضَبْطِهَا لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يَّتَذَكَّرَ

دي په باره علم ميزان کښې چه نشته دے خلاصے ددے ديادولو نه او زده کولو نه

لِاُوْلِي الْاَذْهَانِ وَعَلَي اللّٰهِ (٦) اَلتَّوَكُّلُ وَهُوَ الْمُسْتَعَانُ.

څوک چه پند اونصيحت واخلي دذهن خاوندانو نه په الله توکل دے اوهغه مددګاردے

مُقَدِّمَةٌ (٧) اِعْلَمْ اَنَّ الْعِلْمَ (٨) يُطْلَقُ عَلٰي مَعَانٍ (٩) اَحَدُهَا (١٠)

دامقدمه ده پدے پوهه شه چه علم اطلاق په څو معناګانو باندے کيږي اولني معني

حُصُوْلُ صُوْرَةِ الشَّيْءِ فِي الْعَقْلِ.

په عقل کښې دشي صورت حاصلول.

**(۱)قوله " بَيْنَ الماء والطين "** په دي کښې درسول دالله دي وينا مبارکې ته اشاره ده: اني عِنْدَالله مکتوب لخاتم النبيّنَ وان ادم منجدل في طينة(مشکاة:۵۱۳)، وَفِي روايت الترمذي کنت نبيا وادم بَيْنَ الروح الجسد.

(فائده) ددي حديث نه په صفا طور او رښتيا سره معلوميږي چه محمد دټولو انبياؤ نه اعلي او اوچت دي لکه څنګه چه نمر دنورو ستورو نه اعلي او اوچت دي همدغه شان درسول الله نبوت دنورو نه اعلي او اوچت دي، قال تعالي: وذا اخذالله ميثاق النبيين لما اتيتکم من کتاب وحکمة الي قوله فاسقون.

**(۲)قوله ' واله "** دا په اصل کښې اهل ورپدي کښې ها په الف بدل شوه ددي دليل دادي چه دال تصغير اهيل راځي دال او اهل ترمينځ مشهور فرق دادي چه دال استعمال صرف په اشرافو کښې کيږي لکه ال سيدالمرسلين

یاصرف دنیاوي لحاظ سره لکه ال فرعون په خلاف داهل ددي استعمال په اشرافو او ارزالو دوارو کښي کیږي.

(۳)**قوله "واصحابه"** دا دصحب جمع ده په کسره دیا سره او په سکون دحاء سره چه مخفف دصاحب دي لکه نمر وانمار چه دصاحب جمع ده او صحابي هر هغه مسلمان دي چاچه دحضرت محمد ملاقات کړي وي اګر چه دیو ساعت په مقدار سره وي دا د جمهورو اهل حدیثو په نزد دي او ځني دا وائي چه هغه چاته ویل کیږي چاچه درسول الله نه روایت کړي وي او ځني دا وائي چه درسول الله سره یې ډیر وخت تیر کړي او ملاقات کښي وخت تیر کړي وي.

(٤)**قوله "وبعد"** دا دزماني ظروفو نه دي او دمکان طرف ته مستعار شوي دي او مبني په ضمه سره دي ددي وجه نه ددي مضاف الیه محذوف دي.

(٥)**قوله "فهٰذِهٖ"** په هٰذِهٖ کښي ستاده هغه مسائیلو طرف ته اشاره ده کوم چه په ذهن کښي حاصل او مرتب دي برابره ده چه خطبه ابتدائیه وي او که الحاقي وي.

(٦)**قوله "وَعَلَى اللهِ التوكل"** زما توکل او اعتماد صرف په الله تعالي باندي دي ځکه چه بغیر دالله تعالي دکومك نه ددي تمامول ناممکن دي ددي وجه نه د الله تعالي نه مدد غوښتل مقدم دي (۷)**قوله "مقدمه"** دا دمبتداء محذوفه خبردي یعني هٰذِهٖ مقدمه او لغة قدم دتقدم نه مشتق دي او په اصطلاح کښي مقدمة الجیش یعني دهر لښکر سر لښکر سره مشابهت وجې نه دي شیاتو ته ویل هم شوي دي کوم چه داصل مقصدنه مخکښي لیکل کیږي مقدمه په دوه قسمه ده، یو مقدمة العِلْم ، دویم مقدمة الکتاب مقدمة العِلْم هغه څه ته ویل کیږي په کوم چه په هغي

باندي دعلم په مسائيلو پوهيدل موقوف وي مثلا دعلم تعريف ددي موضع او ددې غرض او مقدمة الكتاب هغه ته ويل كيږي كوم چه د مقصود سره ربط لري او مقصود دپاره ددي زكرنافع وي.

(۸)قوله " العِلم " چونكه مؤلف په مقدمو كښي دمنطق تعريف اوغرض بيانول دي او ددي دغرض او مَوْضُوْع دعلم پيژندل ناممكن دي نو ددي دپاره دهر څه نه مخكښي دمنطق علم مَوْضُوْع او غرض بيانول ضروي و گنړل.

دي دپاره چه دمنطق غرض مجهولات تصوريه او تصديقيه چه فكر كښي دخطا نه بچ كيدل دي تر خو چه تصور او تصديق معلوم شوي نه وي او بديهي او نظري معلومات اوپته نه وي نو ترهغي پوري دمنطق غايت به څنګه معلوم كړي شي.

(۹)قوله " علي معان " په دي دټولو اتفاق دي چه علم دانكشاف دمنشاء نوم دي كوم چه تصور هم وي او تصديق هم وي بديهي هم او نظري هم مكتسب هم او كسب كول هم ليكن ددي په يقين كښي ډير زيات اختلاف دي چه ددي په نتيجه كښي ديارلس مذهبونه جوړشوي دي مگر پدي كښي شپږمشهور دي پنځه ورنه مؤلف ذكر كړي دي او شپږم قول دادي چه علم دحالت او اكبرنوم دي مؤلف چه كوم پنځه مذهبونه ذكر كړي دي پدي كښي اولني څلور دحكماءمذهبونه دي او پنځه دبعضو متكلمينو مذهب دي كوم چه دا وائي چه علم دعالم اومعلوم ترمينځ داضافت نوم دي دماتريديه حضراتو په نزد علم ديو صفت اضافت دي كوم چه دوي په انجلائيه نوم سره مسمي كوي.

فائده: دماتريد په حضراتو په نزد علم هم دنورو صفاتو پشان لكه څنګه

چه انسان هر وخت په حلم او شجاعت سره متصف وي هبدغه شان هر وخت متصف په علم سره هم وي نه دا چه کوم وخت راشي ورته معلوم وي هغه وخت هم ورته دعلم صفت پيدا شوي وي لکه څنګه چه دحکماء دا خيال دي دمثال په طور چه مونږداسي وګڼرو چه کله مونږ ته يو شي معلوم شي نو دي وخت کښي څلور شيان حاصل کړي شي، اول الصُّوْرَةُ الْحَاصِلَةُ من الشئ عِنْدَالعقل، دويم حُصُوْلُ تلك الصورت فِي الْعَقْلِ ، دريم قبول النفس لتلك الصورت ، څلورم الاضافة الْحَاصِلَةُ بَيْنَ العالم والمعلوم نو حکماء دا وائي چه کله داسي څه شي حاصل کړي شي په همدي وخت دعلم صفت هم پيدا کړي شي کوم چه مخکښي ددي نه معلوم نه وو او ماتريديه حضرات ددي خلاف دي.

تنبيه: کله چه کوم شي په علم کښي راشي او مذکور څلور شيان چه کوم ذکرشول حاصل کړي شي نو دي څلورو کښي يو به ضرور اوخامخا خوښوي او مستقل مذهب اختياروي حاضر عِنْدَالمدرك خو دبعضو حضراتو دبيان موافق دعلم دويمه معني ده او سيد زاهدهروي فرمائي چه دغه بل حاصل شوي صورت هم دغه اولني وي و التفصيل في الطولات. او دادي هم پته نه وي چه دي اختلاف ته اختلاف نظري وئيل پکار اومناسب ندي بلکه دا يو معنوي اختلاف دي.

(۱۰)قوله " اَحَدُهَا الْاَوَّلُ حُصُوْلُ " ،الخ دمعلوم صورت قوت ادراکيه حاصل شوي وي الله تعالي داشياؤ متنقش کولو دپاره دشيشي پشان په انسان کښي يو قوت ايښي دي کوم ته چه عقلاء عقل وائي چه په ذهن او خاطر ورنه تعبير کوي شيشه کښي چه خپل صورت ويني او په قوت ادراکيه کې هغه شي سره بدن تشخصات خارجيه راځي او ښکاره او منکشف کيږي

کچري هغه شيان دخارجيه نه وي .

ثَانِيْهَا (۱) الصُّوْرَةُ الْحَاصِلَةُ مِنَ الشَّيْءِ ثَالِثُهَا(۲)

دويم معني هغه حاصل شوے صورت کوم چه په عقل کښې حاصل شوے ،دريم هغه

اَلْحَاضِرُ عِنْدَ الْمُدْرِكِ ، رَابِعُهَا(۳)قُبُوْلُ النَّفْسِ لِتِلْكَ الصُّوْرَةِ،

شي چه دمدرك په نزد حاصل شوے وي ،څلورم چه عقل کوم صورت قبول کړي

خَامِسُهَا (٤) اَلْاِضَافَةُ الْحَاصِلَةُ بَيْنَ الْعَالِمِ وَالْمَعْلُوْمِ(٥)

،پنځمه معني هغه اضافت دے کوم چه دعالم اومعلوم ترمينځ حاصل شوے وي،

وَيُنْقَسَمُ عَلٰي قِسْمَيْنِ اَحَدُهَا يُقَالُ (٦) لَهُ التَّصَوُّرُوَثَانِيْهِمَا يعبر

پس علم په دوه قسمه تقسيم دے يوته تصور ويل کيږي اوبل نه په

عنه بِالتَّصْدِيْقِ اَمَّا التَّصَوُّرفَهُوَ الْاِدْرَاكُ(۷) الْخَالِيْ عَنِ الْحُكْمِ

تصديق تعبير کيږي تصور هغه ادراك دے چه دحکم نه خالي وي

وَالْمُرَادُ(۸) بِالْحُكْمِ نِسْبَةُ اَمْرٍ اِلٰي اَمْرٍ اٰخَرَ اِيْجَابًا وَسَلْبًا وَاِنْ

اوادارك دحکم ته نسبت کول ديوامر نه بل امرته چه دايجاب اوسلب نه خالي وي

شِئْتَ قُلْتَ اِيْقَاعًا(۹) وَانْتِزَاعًا وَقَدْ(۱۰) يُفَسَّرُ الْحُكْمُ بِوُقُوْعِ

اوکه غواړي اووايه واقع کيدل اوعدم واقع کيدل اوکله کله تفسير دحکم کيږي

النِّسْبَةِ اَوْ لَا وُقُوْعِهَا كَمَا اِذَا تَصَوَّرْتَ زَيْدًا وَحْدَهُ

په نسبت دوقوع اوعدم سره لکه څنګه چه ته. دزيد تصور وکړي فقط

اَوْ قَائِمًاوَحْدَهُ من دون ان تثبت القيام لِزَيْدٍ اَوْ تَسْلُبُهُ عَنْهُ ،

اويا قائم يوازي تصور وکړې، غير ددے نه چه زيد.قيام ثابت کړي اويايې ورنه سلب

اما التَّصْدِيْق (۱۱) فَهُوَ عَلٰي قَوْلِ الْحُكَمَاءِ عبارة عَنِ الْحُكْمِ

کړي، تصديق په قولِ دحکماؤ کښي دهغه حکم نه عبارت دي کوم

الْمُقَارِنِ لِلتَّصَوُّرَاتِ (۱۲) فَالتَّصَوُّرَاتِ الثَّلَاثَةِ شَرْطٌ لِوُجُوْدِ (۱۳)

چه د تصوراتو سره مقارن اومتصل وي پس دتصديق وجود دپاره دري تصوراتو شرط دي

التَّصْدِيْقِ وَمِنْ ثَمَّ لَايُوْجَدْ تَصْدِيْقٌ بِلَا تَصَوُّرٍ .

ددي وجه نه تصديق يعني دتصور نه بغير نه موجوديږي.

(۱)قوله " ثَانِيْهَا " يعني هغه معلوم صورت کوم چه په عقل کښي حاصل شوي دي او دا صورت د ذي صورت سره يعني ماهيت معلوم سره متحد وي او دتشخص سره مخالف.

(۲)قوله " ثَالِثُهَا الحاضر " يعني دريم هغه حاضر وجود کوم چه دمدرك سره دي کچري دحاضرذات معلوم وي او دصورت دي کښي څه واسطه نوي نو دا علم حضوري دي او که صورت معلوم وي نو دا علم حصولي دي او دلته مراد هغه اخيرني دي ددي دپاره چه مقسم مصداق تصور او تصديق بيان کوي او مقسم حصولي وي نه حضوري او په هر يو حصولي او حضوري کښي دوه قسمه هريووي تَقَدِيْمٌ او حَادِثٌ دقَدِيْمٌ مثال لکه دعلم په اعتبار سره دالله تعالي علم دي په ټولو مخلوقاتو باندي او مجرد علم لکه يعني دملائکو علم دي دخپل ذات او صفاتو سره او د حضوري او حَادِثٌ مثال لکه زمونږ علم دي په خپل ذات او صفاتو باندي او حصولي قَدِيْمٌ مثال لکه علم بغير دذات په صفات سره او دحضوري اوحَادِثٌ مثال لکه زمونږ علم دي په خپل ذات او صفات باندي او حصولي قَدِيْمٌ مثال لکه علم بغيردذات په صفات باندي او مثال دحصولي حَادِثٌ لکه علم بغير

دخپل ذات او صفاتو دباري تعالی.

(۳)قوله "سَابِعُهَا" يعني ناطقه اوصورت هم دا قبلوي.

(٤)قوله "خامسها" يعني هغه نسبت دي كوم چه دعلم او معلوم ترمنځه حاصل وي او دا مذهب دجمهور متكلمينو په طرف منسوب دي.

(٥)قوله "وينقسم" الخ او دا هغه علم دي كوم چه مطلق حصولي ياحصولي حَادِثٌ وي او دي كنبي دبديهي او نظري نه قطع نظر وكړي شي. او دا په دوه قسمونو دي او دا تباثن في الصدق منقسم كيږي كوم چه په يوبل نه صادق كيږي او په دي دوارو قسمونو كنبي په اعتبار دتباين تحقق ندي لكه داتخيل او ازعان په قضيه مذعنه كنبي جمع كيږي.

(٦)قوله "ويُقَالُ له التَّصَوُّرُ" پدي دوارو قسمونو كنبي يو ته تصور ويل كيږي او كله كله ددي اطلاق په علم سره هم كيږي او دا په تقديري كنبي په علم طرف ته منسوب وي.

- (۷) قوله: فهوالإدراك الخالي ليكن تصور هغه ادراك دي كوم چه دحكم نه خالي وي او دغه ادراك دازعان نه مغائر وي دكوم شي متعلق چه وي تردي چه دخپل قسيم چه تصديق دي دے سره هم متعلق وي چونكه ددي دوارو متعلق مباينت تحقق اعتباري ندي بلكه في الصدق دي او دمفرد سره هم متعلق دي ليكن چونكه هغه مفرد حساس او تخليل او توهم او تعقل دي او هغه پنځه قسمونه دكومو سره چه اشاره وي په نسبت كنبي دي او هغه انشاء او تخيل اوشك او وهم او انكاردي او كله چه دتعريف په مينځ كنبي دحكم ذكر راشي نو ددي اطلاق په دي دري معناګانو كيږي اذعان او نسبت خبر اونسبت او تخييل دي.

(۸)قوله "وَالْمُرَادُ بِالْحُكْمِ" دلته مراد دحكم نسبت دي كوم چه ديو شي

نه بل شي په طرف په طريقه داذعان سره وي برابره ده ثبوتي وي يا سلبي.

قوله (۹) **إِتِّفَاقًا** ايقاع ايجاب سلب انتزاع اسناد او حكم ددي دوارو نه دهر يو اطلاق كله په نسبت تامه خبريه باندي وي برابره ده كه هغه حمليه وي ياشرطيه يا اعقاديه وي يا انفصاليه وي او كله علي وجه الاذعان ددي نسبت ادراك ته هم ويل كيږي او دلته مراد هغه اخرنۍ معني ده.

(۱۰)قوله " وَلَكِنْ يفسر " څكښي اول حكم ديوي معني بيان شوي دي نسبته امرالي امراخر ايجابا دتصوراتو حكم هم موندل كيږي او دا تنيه صرف دمتاخرينو په نزد ده څكه چه ددي دنسبت تقليد په قائل ده كوم ته چه نسبت بَيْنَ بَيْنَ هم ويل كيږي.

فائده: دحكم اطلاق په څلورو شيانو باندي كيږي اول محكوم دويم وقوع النسبة اولاقوعها قضيه مِنْ حَيْثُ اشتما لها علي الربط ادراك وقوع النسبة اولا وقوعها.

(۱۱)قوله " واماَ التَّصْدِيْق " مصنف صاحب چه كله داول تقسيم نه فارغ شو نوددي نه پس د دويم قسم تقسيم ته متوجه شو پدي كښي دامام رازي او دحكماء مينځ اختلاف دي لكه څنګه چه دي باره كښي مؤلف صاحب نبه بيان فرمائيلي دي او دامام رازي او حكماء ترمينځ په مذهب كښي په دري وجو اختلاف دي.

دحكماؤ په نزد تصديق بسيط دي او دامام رازي په نزد مركب دي نسبت او دطرفينو تصور دحكماء په نزد دتصديق دپاره مشروط دي كوم چه په تصديق كښي داخل ندي او دامام رازي په نزدي دتصديق جزءدي كوم چه پدي كښي داخل دي دحكماء په نزد همدغه حكم تصديقي دي او دامام رازي په نزد نفس تصديق ندي مګر دتصديق جزء دي.

**فائده:** دمحقیقینو رایه داده چه دحکماؤ مذهب مقبول قابلِ قبول دي اوحق دي څکه چه تصدیق یو حقیقت واقعیه دي او دامام رازي دمذهب په اعتبار سره یو اعتباري شي جوړیږي کوم چه دډیرو شیانو سره یوځاي کیږي او جوړیږي .

**(۱۲)قوله " وللتصورات "** یعني تصورات ثلاثه ، تصور دمحکوم علیه، تصور دمحکوم به، تصور دنسبت تامه خبریه.

**قوله "لوجود التصدیق"** یعني دا دري تصورات دتصدیق وجود دپاره شرط دي او شطر (جزء) ندي لهٰذا په دي صورت کښي تصدیق بسیط شو دامام رازي په مذهب مرکب شو.

وَالْاِمَامُ (۱) الرَّازِيْ يَقُوْلُ اِنَّهُ عِبَارَةٌ عَنْ مَجْمُوْعِ الْحُكْمِ

او امام رازي وائي چه دا عبارت دے دحکم دمجموعي نه

وَتَصَوُّرَاتُ الْاَطْرَافِ فاِذَا قُلْتَ زَيْدٌ قَائِمٌ واِذَا عَنَتْ بِقِيَامِ زَيْدٍ

اوتصورات داطرافونوم دي کله چه ته اووائي چه زَیْدٌ قَائِمٌ دي او دزید دقیام عقیده هم

تَحْصُلُ لَكَ عُلُوْمٌ ثَلَاثَةٌ اَحَدُهَا عِلْمُ زَيْدٍ وثَانِيْهَا اِدْرَاكُ مَعْنٰي

وکړي نوتاته دري علوم حاصلیږي یو دزید علم ،دویم دقائم معني ادراك

قَائِمٌ وَثَالِثُهَا عِلْمُ مَعْنَي الرَّابِطِ الَّذِيْ يُعَبَّرُ عَنْهُ بِالْفَارِسِيَّةِ بِهَسْت

دریم دهغه رابطي معني، علم چه په فارسي ورنه په هست

فِي الْاِيْجَابِ ونيست فِي السَّلْبِ وَنَهِي فِي الْهِنْدِيَّةِ

په ایجاب کښي اونیست په سلب کښي او په هندیٔ کښي هے نهین یعني دي ندي

وَيُقَالُ (۲) لِهٰذَا الْمَعْنَي الْحُكْمِ تَارَةً وَالنِّسْبَةُ الْحِكَمِيَّةِ اُخْرٰي

اودغه رابطي معني ته كله حكم اوكله نسبت حكميه ويل كيږي.

فَإِذَا اتَّقَنْتَ مَا عَلِمْنَاكَ فَاعْلَمْ (٣) اِنَّ الحُكَمَاءَ يَزْعَمُ اِنَّ

كله چه تا يقين اوكړو نو پدي پوهه شه چه حكماء داوائي چه

التَّصْدِيْق لَيْسَ لِاِدْرَاكِ الْمَعْنٰى الرَّابِطِيْ وَالْاِمَامُ يَزْعَمُ (٤) اَن

تصديق ندي مګر دهغه معني ادراك رابطي دي او امام وائي چه دغه

التَّصْدِيْق مَجْمُوْعُ الْاِدْرَاكَاتِ الثَّلَاثَةِ اَعْنِيْ تَصَوُّرِ الْمَحْكُوْمِ عَلَيْهِ

تصديق د ادراكاتو مجموعه ده يعني تصور دمحكوم عَلَيْهِ

و تَصَوُّرِ الْمَحْكُوْمِ بِهِ وَاِدْرَاكُ النِّسْبَةِ الْحُكْمِيَّةِ الْمُسَمّٰى بِالْحُكْمِ

او بمحكوم به او ادراك نسبت دحكميه دے چه هغې ته حكم وائي.

**فصل** التَّصَوُّرُ (٥) قِسْمَانِ اَحَدُهَا بَدِيْهِيٌّ اَيْ حَاصِلٌ بِلَا نَظَرٍ

تصور په دوه قسمه دي يوته بديهي وائي يعني بغير نظر نه چه حاصل شوے وي او بغير

وَكَسْبٍ كَتَصَوُّرِنَا الْحَرَارَةَ وَالْبُرُوْدَةِ وَيُقَالُ لَهُ الضَّرُوْرِيْ اَيْضًا

دتحصيل نه لكه زمونږ تصور كول دحرارت اوبرودت او دي قسم ته ضروري هم وئيل

وَثَانِيْهِمَا نَظَرِيٌّ اَيْ يَحْتَاجُ فِيْ حُصُوْلِهِ اِلَي الْفِكْرِ وَالنَّظَرِ

كيږي، دويم قسم نظري دي يعني كوم چه په خپل حصول كښې فكر اونظرته محتاج

كَتَصَوُّرِنَا الْجِنَّ وَالْمَلَائِكَةَ فَاِنَّا مُحْتَاجُوْنَ(٦) فِيْ اَمْثَالِ هٰذِهِ

وي لكه زمونږ تصور كول دجن او دملائكه څكه چه مونږ پداسي قسم تصوراتو

التَّصَوُّرَاتِ اِلَي تَجَشُّمِ فِكْرٍ وَتَرْتِيْب نَظَرٍ وَيُقَالُ لَهُ الْكَسْبِيْ اَيْضًا

كښې محتاج يو تَرْتِيْب دنظر ته اودي قسم ته تَرْتِيْب نظري هم ويل كيږي

وَالتَّصْدِيْق اَيْضًا قِسْمَانِ اَحَدُهَا الْبَدِيْهِيْ اَلْحَاصِلُ مِنْ غَيْرِ فِكْرٍ

او تصدیق هم په دوه قسم دي یو بدیهي دي چه بغیر دفکر اونظر نه حاصل شوي وي

وَثَانِيْهِمَا النَّظَرِيْ الْمُفْتَقِرُ اِلَيْهِ (۷) مِثَالُ الْاَوَّلِ اَلْكُلُّ اَعْظَمُ مِنَ

دویم قسم نظري دي چه دفکر کولو محتاج دي داول مثال لکه کل دجزئه غټ دي

الْجُزْءِ(۸) وَالْاِثْنَانِ نِصْفُ الْاَرْبَعَةِ(۹) و مِثَالُ الثَّانِيْ اَلْعَالَمُ حَادِثٌ

او دوه دخلورو نیم دي او د دویم مثال عالم حَادِثٌ دي

وَالصَّانِعُ موْجُوْدٌ وَنَحْوَ ذٰلِكَ(۱۰) **فائـدة** واِذَاعَلِمْتَ مَا ذَكَرْنَا

اوصانع مَوْجُوْدٌ دي اویاددے امثال. کله چه ته هغه څه چه مونږ ذکر کړل په هغې پوهه

اَن النَّظَرِيَاتَ مُطْلَقًا تَصَوُّرِيًّا كَانَتْ اَوْ تَصدِيْقِيًّا مُفْتَقِرَةٌ اِلَي نَظَرٍ

شوي چه ټول نظرونه چه تصوري وي اوکه تصدیقي دنظر اوفکر محتاج دي نو ستا دپاره دنظر

وَفِكْرٍفَلَابُدَّ اَنْ تَعْلَمَ مَعْنَي النَّظَرِ فَاَقُوْلُ النَّظَرُ فِي اِصْطَلَاحِهِمْ عِبَارَةٌ

اوفکر معني پیژندل لازم دي پس وایم چه نظر داهل معقول په اصطلاح کښي عبارت دي.

(۱)**قوله '' والامام الرازيْ ''** دده نوم محمد دي او دامام فخرالدین رازي په نوم مشهور دي دي په اول کښي مفلس وو او کله چه څلور طرفه مشهور شو او دده دعلم فضل چرچه شوه نو درزق دراوزي وربانديږ پرانستل شوي، په علم تصوف او سلوك پوري هم وابسته وو او علم کلام او فلسفه کښي هم ماهررو په عربي او فارسي لوي واعظ او خطیب وو اودبدعاتو په رد کښي لري لاس لرلو او [illegible] تثلیث د دعوي نه یریدل او یهودیان ورسره په مناظره کښي کمزوري وو.

دي په ۵۴۳ یا ۵۴۲ کښي پیدا شوي دي او په هرات کښي دواړه اختر په

ورځ په ٦٠٦ وفات شو ددا دده وصيت دے چه ماطرق کلاميه او فلسفيه وليدل او دقران په طريقو هم پوهه شوي يم مگر ما چه دقران دطريقو نه څه وليدل زه به يې ديوي طريقي نورو سره يوځاي نکړم خکه چه دقران خطاب زړونو ته دے او په دي دځان پوهول پکار دي او دمتکلمينو او فلسفه تعلق او خطاب دعلومو سره دي دوي ته پکار دي چه دقران په نزد خاموش او چپ پاتي شي ځکه چه دي سرۃ اطمنان نه رسيږي (هکذا في طبقات الشا فعية الکبری).

(۲)قوله " ويقال " ددي مطلب دادي چه درابطي معني دنسبت تامه خبريه ده کومه چه دموضوع او محمولي ترمينځ واسطه وي دوهم اوشك په صورت کښي ددي تصور صرف درابطي په حيثيت وي او ديته نسبت حکميه وئيل کيږي او په بعضي صورتو کښي هغه دامري واقعي حکايت هم کوي ددي وجي نه ديته حکم هم ويل کيږي.

(۳)قوله " فاعلم " حکماء فرمائي چه دتصديق نوم دمعني رابطي دي او دلته دمتاخرينو په نزد تصديق دنسبت وقوع اولاوقوع نسبت ادراك ته ويل کيږي دکوم نه چه مراد اذعان دي.

(٤)قوله " والامام يزعم " امام رازي فرمائي چه تصديق دادراکات ثلثه دمجموعي نوم دي، اول تصور محکوم عليه دويم تصور محکوم به، دريم ادراك نسبت حکميه او دي نسبت دادراك نوم حکم دي.

(٥) قوله التصور قسمان" ددي نه مؤلف دتصور اودتصديق دتقسيم شروع کوي حاصل يې دادي چه ټول تصور نظري وي او بعضي بديهي او همدغه شان تصديق نظري هم وي او بديهي هم وي نه هريو تصور بديهي او نظري دي او نه هر تصديق بديهي او نظري دي کچري ټول تصورات او تصديقات

بديهي وي نو موثر ته به ديوشي په باره كښي هم دفكر كونو كوم ضرورت نه وو حالانكه موثر ته ډير اشياء معلوم نه دي او كچري ټول تصورات او تصديقات نظري وي نو بيا دوام او تسلسل لازم كيدو حالانكه دادواړه محال دي والتفصيل في الصولات.

(٦)قوله فانا محتاجون داامام فخرالدين رازي په نزد ټول تصورات بديهي دي دهغه په نزد بعضي تصورات نظري مسلم نه دي پدي وجه مؤلف دده دردكولو دپاره اوويل چه دمثال په طور او كوري چه دفرښتو او جناتو تصور بديهي نه دي او كه چري بديهي وي نو بيابه موثر بغير دكوم فكر او غور كولو نه وربانديي پوهيدلي حالانكه داسي نده.

(٧)قوله مثال الاول يعني دا مثال دتصديق بديهي دي چه كل داجزاؤ نه غټ دي دا مثال د اولياتو نه دي دا قول الاثنان نصف الاربعة مثال دفطرياتو نه دي او تصديق بديهي دي.

(٨) والاثنان نصف الاربعة، دامثال دنظرياتو دي او دا تصديق بديهي دي.

(٩)قوله ومثال الثاني، يعني دنظري تصديق مثال العالم حَادِثٌ دالله تعالي غير ټول حَادِثٌ دي.

(١٠) قوله ولحوذلك، لكه النار حارة دا دبديهي تصديق مثال دي وكل حيوان جسم دا دنظري تصديق مثال دي.

عَنْ(١) تَرْتِيْب أُمُوْرٍ مَعْلُوْمَةٍ يتادي ذٰلِكَ التَّرْتِيْب (٢) الي تَحْصِيْلِ

دتَرْتِيْب امور معلومه نه ددي دپاره چه هغه مجهول تَرْتِيْب ته ورسيږي

الْمَجْهُوْلِ كَمَااِذَا رَتَّبْتَ الْمَعْلُوْمَاتِ الْحَاصِلَةِ لَكَ مِنْ غَيْرِ تَغِيْرِ

لكه څنګه چه كوم معلومات تاته حاصل دي مثلا لكه چه عالم متغير دي

الْعَالَمِ وَحُدُوْثُ كُلِّ مُتَغَيِّرٍ حَادِثٌ فَحَصَلَ لَكَ مِنْ هٰذَا النَّظَرِ

او حَادِثٌ دي اوحدوث دهرمتغير درته معلوم شو، اوته واني

وَالتَّرْتِيْبِ عِلْمُ قَضِيَّةٍ أُخْرىٰ لَمْ يَكُنْ حَاصِلاً لَكَ قَبْلُ

نو ددينه تاته دبلې قضيه علم حاصل شو چه هغه مخکښې تاته حاصل نه وو

وَهِيَ الْعَالَمُ حَادِثٌ. **فصل**: اِيَّاكَ(۳) وَاَنْ تَظُنَّ اَنَّ كُلَّ تَرْتِيْبٍ

او هغه دا چه عالم حَادِثٌ دي فصل هر ترتيب صحيح نوي

يَكُوْنُ صَوَابًا مُوْصِلًا اِلٰى عِلْمٍ صَحِيْحٍ كَيْفَ وَلَوْكَانَ الْاَمْرُ

يخپله خپل خان ددي خيال اوفكر نه خان وساته چه هرتَرْتِيْب صحيح اوعلم صحيح ته

كَذٰلِكَ مَا وَقَعَ الْاِخْتِلَافُ و التَّنَاقُضُ بَيْنَ اَرْبَابِ النَّظَرِ

رسوونکي دي خنګه به لري ونه ساتي حالانکه که چيرته خبره داسي وي نوبه تَرْتِيْب

مَعَ اِنَّهُ قَدْ وَقَعَ فَمِنْ قَائِلٍ يَقُوْلُ

ورکوونکو کښې به اختلاف واقع نه وو. حالانکه دا اختلاف واقع دي خکه بعضې

الْعَالَمُ حَادِثٌ ويستدل بِقَوْلِهِ العالم متغير وكل متغير

واني چه عالم حَادِثٌ دي اودخان سره دادليل راوړي چه عالم متغير دي اوهر متغير

حَادِثٌ فَالْعَالَمُ حَادِثٌ ، وَمِنْ زَاعِمٍ يَزْعَمُ اَنَّ الْعَالَمَ(٤) قَدِيْمٌ

حَادِثٌ دي پس عالم حَادِثٌ دي اونور داسي واني چه عالم قَدِيْمٌ دي

غَيْرُ مَسْبُوْقٍ بِالْعَدَمِ وَيُبَرْهِنُ عَلَيْهِ بِقَوْلِهِ الْعَالَمُ

دعدم نه وروسته ندي مَوْجُوْدٌ شوي اوپهدي داسي دليل پيش کوي چه عالم دمؤثر نه

مُسْتَغْنٍ عَنِ الْمُؤَثِّرِ وَكُلُّ مَا هٰذَا شَانُهُ فَهُوَقَدِيْمٌ وَلَا

مستغني دي اودهر هغه شي چه داسي شان وي پس هغه قَدِيْمٌ دي اوزه په تاباندي پدي

اَظُنُّكَ شَاكًّا فِيْ اَحَدِ الْفِكْرَيْنِ صَحِيْحٌ حَقٌّ وَالْاٰخَرُ

هيڅ ګمان نه کووم چه په دغه دوه فکرونو کښي يو صحيح دي اوبل.

(۱) قوله عن تَرْتِيْب ، تَرْتِيْب په لغت کښي هر يو شي لره بڅپله مرتبه کښي ايخودلو ته وايي او په اصطلاح کښي يوڅو ځيزونو لره جوړ ورکولو ته تَرْتِيْب وايي، چه يو نامعلوم ځيز معلوم شي مثلا دفرشتو دتصور حاصلولو متعلق داسي وويلي شي:جسم لطيف نوراني يتشکل باشکال مختلفة لا يتصف بذکورة ولا انوثة، او يا داسي وويلي شي: جسم ناري لطيف يتشکل باشکال مختلفة لا يتصف بالذکورة والانوثة، دا دوه مثالونه دتَرْتِيْب تصوري دي او يا مثلا العالم حَادِثٌ دالله تعالي نه علاوه نور ټول شيان دعدم نه مَوْجُوْدْ شوي دي نو دعالم دحدوث تصديق حاصلولو دپاره داسي ويل کيږي العالم متغير وکل متغير حَادِثٌ نه العالم حَادِثٌ وغير ذٰلِكَ سوال دا ويل څه ضروري ندي چه دمجهول شي تصور ياتصديق حاصلولو دپاره څوشيانو ته تَرْتِيْب ورکړي کيږي ځکه کله ديو شي معلومولو حاصلولو دپاره دويم شي معلوميږي مثلا صرف خاصه ياصرف خاصه نه ديو شي تعريف کيدي شي اول جواب دا تعريف ناقص دي او زمونږ بحث په تعريف کامل کښي دي ،بَلْ جواب دادي کوم تعريف چه بِالْمُفْرَدْوي هغه دمشتق صيغي نه کيږي او په مشتق کښي دوه شيان وي يو ذات اوبَلْ صفت لِهٰذَا هغه تعريف بِالْمُفْرَد نه دي قلت ويَنْبَغِيْ ان يضحك عليه الصبيان.

*فائده*: دا چه کوم ويل کيږي چه تَرْتِيْب ديوڅو شيانو يوځاي کولو ته

ویل کیږي نو دځو نه مراد دادي چه دیو نه زیات وي اګر چه همدغه دوه هم وي.

(۲)قوله الي تَحْصِيْلِ المجهول، یعني دمنطقیانو په اصطلاح کښي دنظردا معنی ده چه یو څو شیان داسي سره یوځاي کړي چه نامعلوم او مجهول شي معلوم شي مګر دا خبره دي واضحه وي چه ددغه مجهول شي په وجه دمخکښي نه ددي شي معلومول ضروري دي او که داسي نه شي نو طلب به دمجهول مطلق راشي کوم چه محال دي او دا هم ضروري ده چه دکوم مطلق تصوري یاتصدیقي معلومول وي چه هغه دمخکښي نه بالکل معلوم نه وي او که داسي نه وي نو تَحْصِيْلِ دحاصل به راشي او داهم محال دي.

فائده: کوم شخص چه دیو مجهول شي طرف ته توجه وکړي نو دهغه ذهن دهغي معلومات تصوریه یاتصدیقیه طرف ته توجه کوي کوم چه دمخکښي نه دده سره محفوظ وو ددي نه روسته دده معلوماتو کښي انتخاب کوي کوم چه دمجهول مطلوب سره مناسبت لري لِهٰذَا؟ کوم چه غیر مناسب وي هغه باید پریښودل شي مثلا دا تاته معلوم دي چه عالم حَادِثٌ دي یاندي او تادخپلو معلوماتو طرف ته توجه اوکړه او دعالم متعلق امور دي مستحضر کړل چونکه تاّله دا معلومه ده چه عالم متغیر وي او دا معلوموو چه کوم شي متغیر وي هغه حَادِثٌ وي نو د اول حرکت وکړي شو ددي نه ورروسته تا معلومو اشیاءته تَرْتِيْب ورکړو داسي اوویل چه العالم متغیر وکل متغیر حَادِثٌ لو دا دویم حرکت شو او ددي دواړو حرکتونو نه روسته دا معلوم شو یعني العالم حَادِثٌ مګر دا دي هم پته نه وي چه دهر مطلوب حاصلولو دپاره د دواړو [illegible] ضروري نه دي مګر کله کله صرف یو حرکت نه نتیجه معلوم کیدي شي او کله صرف دغه دریم حرکت هم کافي کیدي

شي ددي نه روسته پدي پوهه شه چه دمتقدمينو منطقيانو په نزد دواړو حركتونو مجموعي نوم فكر دي لهٰذَا په كومو خايونو كښي چه د دواړو حركتونو ضرورت نه وو هلته بداهت وي او متاخرين وائي چه د دويم حركت نوم فكر دي چرته چه دويم حركت وي هلته بداهت وي اولني حركت وي او كه نه مكر دواړه مذهبونه دخطرنه خالي ندي ددي تفصيل په لويو كتابونو كښي موجوددي مكر مونږ دلته دومره ضروري وايو چه ديو مجهول حاصلولو دپاره دمعقولاتو په عقل كښي نوم مكر دي برابره ده چه يو حركت دي يا دويم كه چري يو حركت هم نه وي نو هلته به بداهت وي.

(۳)**قوله اياك،** په مقدمه كښي مؤلف دمنطق دضرورت دپاره دليل بيانوي او چه كله هم هغه دليل صحيح وي كله چه دا خبره ثابته كړي شي چه هر فكر او هرتَرْتِيْب صحيح نتيجه نه وي لهٰذَا دلته دا بيانوي دا دليل چه علم تقسيم كوي چه ددي اقسام نظري او بديهي دي پدي هم دا تقسيم موقوف دي مكر مؤلف ددي ذكر دمخكښي ندي كړي دي.

(٤)**قوله ان العالم قديم،** ترجمه عالم قَدِيْمٌ دي دا عالم دعدم نه وجود ته راغي العالم قَدِيْمٌ دا دهغه خلقو مذهب دي كوم چه دوجود صانع نه منكر دي مكر حكماء محقيقين اكر چه ددي قائل دي چه العالم قَدِيْمٌ وائي مكر چونكه بلاسبب او علت دعالم موجوديت بداهت دعقل خلاف ګنړي او دا ترجيح بلاترجيح ګنړي كوم چه محال دي ددي وجه دصانع وجود قائل دي.

فَاسِدٌ(۱) غَلَطٌ وَاِذَاكَانَ قَدْ وَقَعَ الغَلَطُ فِيْ فِكْرِ الْعُقَلَاءِ فَعُلِمَ

فاسد اوغلط دي او كله چه دعاقلانو په فكر كښي غلطي واقع كيږي نو ددي نه

مِنْ ذٰلِكَ اِنَّ الْفِطْرَةَ الْاِنْسَانِيَّةَ غَيْرُ كَافِيَةٍ فِيْ تَمِيْزِ الْخَطَاءِ

معلومه شوه چه انساني فطرت دخطاء نه په صواب كښې اوددې په جداكولو كښې

مِنَ الصَّوَابِ وَامْتِيَازُ الْقَشْرِ عَنِ اللُّبَابِ فَجَاءَتِ الْحَاجَةُ فِيْ ذٰلِكَ

كافي ندي نو ددي دپاره يوقانون ته ضرورت پيدا شو كوم چه

اِلٰي قَانُوْنٍ(۲) عَاصِمٍ عَنِ الْخَطَاءَ فِي الْفِكْرِ يَتَبَيَّنُ فِيْهِ طُرُقُ

دخطا نه بچ كوونكي وي چه په دغه قانون كښې مجهولات دمعلوماتو نه حاصل

اِكْتِسَابِ الْمَجْهُوْلَاتِ عَنِ الْمَعْلُوْمَاتِ وَهٰذَا الْقَانُوْنُ (۳) هُوَ

كوونكي وي اودغه قانون همدغه منطق اوميزان دي او ددي نوم وجه داده

الْمَنْطِقُ وَالْمِيْزَانُ . اَمَّا تَسْمِيَتُهٗ بِالْمَنْطِقِ فَلِتَاثِيْرِهٖ فِي النُّطْقِ

خكه چه داپه خبرو كښې اثر واقع كوي يعني خكه چه دا معارف پدي علم به خبرو

الظَّاهِرِيْ اَعْنِي التَّكَلُّمَ اِذِ الْعَارِفُ بِهٖ يَقْوِيْ عَلَي التَّكَلُّمِ

كښې قوت ورته وركوي او جاهل پدي علم به خبرو كښې قوت ورته وركوي

بِمَا لَا يَقْوِيْ عَلَيْهِ الْجَاهِلُ وَكَذَافِي الْمَنْطِقِ الباطني اَعْنِيْ

اوجاهل ته ددي علم داقوت حاصل نه وي اوهمدارنگه په باطني خبروكښې هم يعني په

الْاِدْرَاكَ لِاَنَّ الْمَنْطِقِيْ يَعْرِفُ (٤) حَقَائِقُ الْاَشْيَاءَ و يَعْلَمُ اَجْنَاسَهَا

ادراكاتو كښې خكه چه منطقيان داشياؤ په حقايقو باندي پوهيږي اوداشياؤ جنسونه

وَفُصُوْلَهَا وَاَنْوَاعَهَا وَلَوَازِمَهَا وَخَوَاصَهَا بِخِلَافِ الْغَافِلِ

اوفصلونه اولوازم اويه خواصو پوهيږي په خلاف دغافل،

عَنْ هٰذَا الْعِلْمِ الشَّرِيْفِ ، وَاَمَّا تَسْمِيَتُهٗ بِالْمِيْزَانِ لِاَنَّهٗ قِسْطَاسٌ

ددي وجه د تسميه په نوم د ميزان خکه چه دادعقل دپاره ميزان دي خکه چه پدي سره

لِلْعَقْلِ يُوْزَنُ بِهِ الْاَفْكَارُ الصَّحِيْحَةِ وَيُعْرَفُ بِهِ نُقْصَانُ

عقلونه اوفکرونه تللې کيږي او وربانديې پيژندل کيږي هغه څه چه په فاسدوفکرونو

مَا فِي الْاَفْكَارِ الْفَاسِدَةِ وَاخْتِلَالُ مَافِي الْاَنْظَارِ الْكَاسِدَةِ

کښي موجوّد وي ، اوهغه ږچه په فاسدو کاسووکښي موجوّد وي

وَمِنْ ثَمَّ يُقَالُ (٥) لَهُ الْعِلْمُ الْاٰلِيُ لِكَوْنِهِ اٰلَةً لِجَمِيْعِ الْعُلُوْمِ اِعْلَمْ

او ددي وجه نه دي ته علم اولي ويل کيږي خکه چه دادټولو علومو اله ده

اَنَّ اَرَسْطَاطَالِيْسَ(٦) الْحَكِيْم دَوَّنَ هٰذَا الْعِلْم بِاَمْرِ الْاِسْكَنْدَرِ

فائده پدي پوهه شه چه دا علم ارسطاطاليّس دسکندر

الرَّوْمِيْ وَلِهٰذَا يُلَقَّبُ بِالْمُعَلِّمِ الْاَوَّلِ و الْفَارَابِيْ (٧)

رومي په حکم راجمع کړيدي دکوم چه لقب اولني موجد دي اوفارابي

هَذَّبَ هٰذَا الْعِلْم وَهُوَ الْمُعَلِّمُ الثَّانِيْ وَبَعْدَ اِضَاعَةِ كُتُبِ الْفَارَابِيْ

دغه فن اسانه کړيدي او دي دوهم معلم دي اودفارابي دکتابونو دضائع کيدو نه

فَصَّلَهُ الشَّيْخ اَبُوْ عَلِيْ سِيْنَا(٨).

وروسته شيخ ابو علي سينادغه علم تفصيل سره بيان کړي دي.

(۱)قوله والْاُخَرُ فاسد، ددي دا مطلب دے چه کله دوه فکرونه خپل مينځ کښي يوخاي کړي نو ددي نه ضرور يو غلط فکر پيدا کيږي خکه چه که چري دواړه صحيح کړي شي نو اجتماع النقيضي به راشي۳۳ يا به ارتفاع دنقيضين لازم کړي شي او دواړه محال دي لهٰذا يو همدغه صورت به

جوړيږي چه يو به صحيح اوبل به غلط شي.

(۲)**قوله قانون**، دا يو يوناني لفظ دي او يا سرياني دي ددي لفظي معني دکتاب کرښه ده او په اصطلاح کښي يو امر کلي ته قانون ويل کيږي کوم چه په خپلو جزئياتو منطبق کيږي ددي دپاره چه ددي جزئياتو احکام معلوم شي لکه دنحويانو قانون چه کل فاعل مرفوع دي لهٰذا ضرب زيد مرفوع دي ځکه چه فاعل دي.

(۳)**قوله هو منطبق**، دهر مرکب دپاره څلور علتونه وي . يو مادي، دويم صوري، دريم غائي فاعل، څلورم جسمي داسي چه دا تخت دلرګي نه جوړ شوي دي تخته ددي دپاره علت مادي دي او دجوړيدو نه وروسته چه کوم صورت حاصل شوي دي دا علت صوري دي او پدي باندي کيناستل علت غائي دي او دا درستوالي علت فاعلي دي همدغه شان منطق هم يو مرکب دي دي دپاره ددي هم څلور علتونه دي چنانچه مسائل تصوريه او تصديقيه په خپلو مادو کښي او دخپلو صورتونو کښي او دمنطق علت مادي دي او ددي تصوراتو اجتماع خصوصي صورت حاصل کيږي کوم صورت چه حاصل شوي دي علت صوري دي او دخطا في الفکر نه حفاظت کيدل علت غائي دي او همدغي ته علت فاعلي ويل کيږي دي دپاره ارسطو يابل کوم حکيم وئيلي دي او که داسي نه وي نو فاعل مختار مطلق الله رب العزت دي منطق دي يا مصدر ميمي دي چه ددي معني ده خبري کول او ددي علم په واسطه کلام ظاهري او کلام باطني حکمي کيږي دي وجه ديته منطق ويل کيږي يادا صيغه دظرف ده چونکه دا علم محل دنطق دي دي وجه نه په منطق مسمي شوي دي.

(٤)**قوله يَعْرِفُ حقائق الاشياء**، يعني منطق داشياء حقيقتونه پيژني دا

صرف ددوي خوش فهمي ده ځکه چه داشياء په حقائقو صرف او صرف الله تعالي پوهيږي او دا شان صرف دالله تعالي دي ځکه چه دا ټول يوازي صرف الله تعالي پيدا کړي دي هوالاول والاٰخِرُ والظاهر والباطن وَهُوَ بكل شيئ عليم، حقيقت دادي چه انسان ددي څه دعوي کوي مګر دنه ددېرڅه علم نشته دي او نه ورباندي پوهيږي انسان صرف يوڅو مرضونه او ډير په لږو شيانو پوهيږي او نه انسان دعقل دحقيقت نه خبردي او نه دروح حقيقت نه خبردي ولقد صدق الله جل وعلي شانه ولا يحيطون بشئ من علمه الابما شاء.

(۵)قوله الْعِلْم الالي، علم الي هغه علم ته ويل کيږي کوم چه في نفسه او بذات خود مقصود نه وي بلکه دبل مقصودي شي حاصلولو دپاره اله وي او کوم علم چه بذات خود هغه تصور وي هغه ته غيرالي ويل کيږي دا علم منطق چونکه بذات حفد مقصود ندي او دقوت عاقله او دمطالبه کسبيه په مينځ کښي يوه واسطه ده نو ديته علم الي ويل کيږي.

فائده: اله هغه واسطي ته ويل کيږي دکومي په ذريعه چه تر مفعوله پوري دفاعل اثرورسيږي.

(٦)قوله ارسطوطالَيْس دي، دا هغه حکيم دێ کوم ته چه معلم اول ويل کيږي دده مخفف نوم ارسطو دي، دده پيدايش په طاجيراکښي شوي دي کوم چه د مقدونيه ښاردي دغه موصوف په اتلس کلنئ کښي دافلاطون خواته دعلم حاصلولو دپاره ځان اورسولو لو بيا دمقدونيه دبادشاه په حکم واپس راغلو او دده زوي اسکندرته به يي تعليم ورکولو ددينه روسته راتنيه ښار ته اورسيدلو هلته يي يوه مدرسه روانه کړه په يونان کښي ددي پشان بله مدرسه ددي برابر نه وه په دي مدرسه کښي درس به د ارسطو

خپله درس ګاه وه ده پروزيانو ته شاګردانو ته به يې تدريس کولو دي وجه نه ده ته معلم اول ويل کيږي ځکه چه دي دمنطق علم واضع دي او ده دغه علم دقوت نه فعل ته راوړي دي (الملل والنحل) داهل علم دا خيال دي کچري دارسطو کتابونه نه وي نو منطق او فسلفه به دخپل ځاي نه نه وو خوځيدلي او نه به دا ديو قوم نه بل قوم ته رسيدلي وو موصوف تقريبا په ٦٢ کلن کښې ددي فاني دنيا نه سترګي پټي کړي.

(۷)قوله ، دفارابي کنيت ابونصر دي او دده نوم محمد بن طرحان دي او فارسي الاصل دي او فلسفه په باره کښې يې غټ معلومات لرلو او موسيقي کښې يې هم مقام لرلو او طبيعت يې يوازي والي يې خوښولو ګنو باغونو اوبنګلو چينو ته به ډير تللو دته دا فلاطون او ارسطو دعلومو واضح کولو نبه مَوَقَعَ وه او ددي يې ښه وضاحت اوکړو دي وجه دته معلم ثاني ويل کيږي په اتياکلن کښې په سنه ۷۲۹ کښې وفات شو.

(۸)قوله ابن سينا، داد شيخ رئيس په لقب سره مشهور وو او ابو علي کنيت وو او حسين دده نوم او عبدالله يې پلار وو اوسينان يې نيکه وو او شيخ رئيس په علم طب کښې لوي کمال لرلو او په علم فلسفه کښې هم ماهر وو او دعلم ادب اوهندسه يې ښه مطالعه کړي وه او ددي باوجود حافظ قران هم وو په لس کلن کښې ښه جيد حافظ وو داميرمنصور ابن نوح نه يې اجازت واخستلو او دده په کتب خانه کښې داخل شو هلته دهرعلم کتابونو او دضرورت مطابق يې هلته مطالعه کړل چه دده دزماني خلق ورسره ناشنا وو او دمطالعي نه يې لوي بصيرت حاصل کړ او په اتلس کلنۍ يې لوي مهارت حاصل کړو دي فرمائي چه کله به ماته مشکل مخې ته راغلل زه به هغې پسې شوم چه حل يې کړم خو چه کار بهاونه شو نو ما به

دوه رکعاته مونځ په ډير عاجزئ سره اوکړو دالله تعالي په دربار کښي مي ښه په عاجزي او ژړا دعا اوکړه په ماباندي به دالله تعالي دطرفه فيضان عطا شو او دهغه حد اوسط معلومات به راته حاصل شو شيخ رئيس دا هم وائي ماټول علوم فلسفه حاصل کړي دي مګر په الهي علم کښي عاجز شوي يم او ماددي تَحْصِيْلِ اونه کړے شو تردي پوري چه دفارابي کتاب راته حاصل شو چه ددي نه راته ددي دشاهراه معلومه شوه او دهغه داغراضو نه خبر شوم موصوف په مرض دقولنج باندي مبتلا شو په ٤٦٨ کښي وفات شو او ډير تصنيفات يې پريښودل.

**فصل** وَلَعَلَّكَ عَلِمْتَ مِمَّا تَلَوْنَا عَلَيْكَ فِيْ بَيَانِ الْحَاجَةِ

فصل: شايد چه ته ددي مضمون نه کوم چه دمنطق ضرورت متعلق تاته

حَدَّ الْمَنْطِقِ وَتَعْرِيْفِهِ (۱) مِنْ اَنَّهُ عِلْمٌ بِقَوَانِيْنَ تَعْصِم

واورول شو د علم منطق حد او تعريف پيژندلي وي چه دابه دوه قوانينو علم دي

مُرَاعَاتُهَا الذِّهْنَ عَنِ الْخَطَاءِ فِي الْفِكْرِ .

چه ددي په مراعات کولو سره ذهن خطا فکري نه ساتي.

**فصل** مَوْضُوْعُ كُلِّ عِلْمٍ مَا يُبْحَثُ فِيْهِ عَنْ عَوَارِضِهِ الذَّاتِيَّةِ (۲)

دهر علم موضوع هغه شي دے چه پکښي دهغه علم عوارض ذاتيه بيانيږي

لَهُ كَبَدَنِ الْاِنْسَانِ لِلطِّبِ وَالْكَلِمَةُ وَالْكَلَامُ لِعِلْمِ النَّحْوِ فَمَوْضُوْعُ

لکه د طب دپاره دانسان بدن او کلمه او کلام دعلم نحو دپاره نو دمنطق علم مَوْضُوْع

الْمَنْطِقِ الْمَعْلُوْمَاتُ التَّصَوُّرِيَّةِ و التَّصْدِيْقِيَّةِ لَكِنْ لَا مُطْلَقًا بَلْ

معلومات تصوريه او تصديقيه دي ليکن نه مُطْلَقًا بلکه په دي شان سره چه

(۳) مِنْ حَيْثُ اَنَّهَا مُوْصِلَةٌ اِلَي الْمَجْهُوْلِ التَصَوُّرِيْ و التَّصْدِيْقِيْ .

رسول کوي مجهول تصوري ته او مجهول تصديقي ته .

فائدة:اِعْلَمْ اِنَّ لِكُلِّ عِلْمٍ وَصَنَاعَةٍ(٤) غَايَةٌ وَاِلَّا لَكَانَ

فائده! په دي ښه پوهه شه چه دهر علم او صنعت څه غرض وي کچري غرض ونه لري

طَلَبُهُ عَبَثًا وَالْجِدُّ فِيْهِ لَغْوًا و غَايَةُ عِلْمِ الْمِيْزَانِ(٥)

نو طلب به عبث شي او کوشش به لغو شي او دعلم ميزان غرض

الْاِصَابَةُ فِي الْفِكْرِ وَحِفْظُ الرَّايِ عَنِ الْخَطَاءِ فِي النَّظَرِ.

په فکر کښي رسيدل دي او په نظر کولو حفاظت دخطا نه دي.

**فصل**: لَا شُغْلَ(٦) لِلْمَنْطِقِيِّ مِنْ حَيْثُ (٧) اِنَّهُ مَنْطِقِيٌّ يَبْحَثُ

فصل: دمنطقي دپاره څه شغل نشته په حيثيت دالفاظو څنګه بحث کولي شي دابحث

الْاَلْفَاظَ كَيْفَ وَهٰذَا(٨) الْبَحْثُ بِمَعْزَلٍ عَنْ غَرَضِهِ وِغَايَتِهِ

حالانکه دمنطق دغرض او غايت نه جدادي

وَمَعَ ذٰلِكَ فَلَا بُدَّ لَهُ مِنْ بَحْثِ الْاَلْفَاظِ الدَّالَةِ عَلَي الْمَعَانِيْ

ددي باوجود دبحث کولو د داسي الفاظو نه کوم چه په معنا ګانو دلالت کوي

لِاَنَّ الْاِفَادَةَ وَالْاِسْتِفَادَةَ مَوْقُوْفَةٌ عَلَيْهِ وَلِذٰلِكَ يُقَدَّمُ بَحْثُ الدَّلَالَة

څکه چه فائده او استفاده دهمدي الفاظو نه کيږي دهمدي وجي نه بحث ددلالت

وَالْاَلْفَاظِ فِيْ كُتُبِ الْمَنْطِق . . **فصل في الدلالة**

او دالفاظو دمنطق په کتابونو کښي مخکښي راځي. فصل : په بيان ددلالت کښي

الدَّلَالَة لُغَةً هُوَ الْاِرْشَادُ اَيْ رَاه نَمُوْدَنْ وَفِي الْاِصْطِلَاحِ.

او دلالت په لغت کښي ارشاد (لاره ښودلو) ته وائي او په اصطلاح کښي.

**(١)قوله "ولتعريفه"** مؤلف فرمائيلي دي چه دتير شوي بيان نه به دے دمنطق تعريف معلوم کړي وي او هغه دادي چه دا د هغه قوانينو نوم دي دکومو په لحاظ کولو سره چه دخطا في الفکر نه محفوظ کيدل کيدي شي درعايت قيد يې ددي دپاره اولړولو څکه چه ترڅو پوري ددي دقوانينو لحاظ دي نه وي ساتلي ترهغي پوري نفس منطق دخطاء في الفکر نه محفوظ کيدي نشي او دفي الفکر قيد يې څکه اولړولو چه علم نحو علم صرف او بيان ددي نه خارج شي څکه چه دهغي دقواعدو په لحاظ ساتلو دخطا في الفکر نه نشي محفوظ کيدي بلکه دخطا في المقال محفوظ کيدي شي.

**(٢)قوله "عن عوارضه الذاتية** "عن عوارضه الذاتيه، د کوم شي عوارض او يادهغي ذات ته عوارض محمول کړي شوي دي يادهغي جزء ته يادبو امرخارج کول کوم چه دي معروضاتو سره برابر وي او يا ددي نه عام وي يا ددي نه خاص وي يا جدا وي دا شپږ صورتونه شول اول دري صورتونه دي کوم چه عارض شوي وي ديته عوارض ذاتيه ويل کيږي او دي دريونوروته عوارض غريبه ويل کيږي او په علومو کښي دهمدغه عوارض ذاتيه محفوظ کيدي شي.

**(٣)قوله " من حيث، الخ "** دحيثيت دري اقسام دي ، يو حيثيت اطلاقيه دويم تقيديه يوحيثيت تعليليه، حيثيت اطلاقيه دکوم سره چه لږيدلي وي او ددغه ذات او احکام په مقابِل کښي نه وي او حيثيت تقيديه دواړو په بدل کښي او حيثيت تعليليه صرف احکام بيانوي اوذات نه بيانوي.

**(٤)قوله : صناعته،** دلته که چري علم او صناعت په يوه معني کښي راغلي وي نو بيا داعطف تفسيري دي او که دعلم او صناعت جدا جدا معني

واخلي نو دعلم نه مراد صرف علم وي چه دکوم تعلق دعمل دکيفيت سره نه وي او صناعت دعمل کيفيت سره وي.

(٥)قوله " غايته " غايت شي دشي نه خارج اود تصور نه مقدم او مخکښي وي څکه چه تر څو پوري دشي غايه معلومه نه وي نو دهغي طلب عبث وي لهٰذَا دعلم منطق طالبانو ته پکار دي چه دمنطق دلوستلو نه مخکښي ددي غايت معلوم کړي لکه څنګه چه مؤلف بيان کړي دے پدي قول کښي الاصابة في الفکر.

(٦)قوله "لا شغل " پدي کښي څلور لغات دي په ضمي دشين او په سکون دغين مَشغل بضميتن وشَغل په فتحي دشين او سکون دغين شَغل بفتحتين.

(٧)قوله " مِنْ حَيْثُ انه مَنْطِقِيٌ " کله ناکله نحوي هم وي او کله چه دنحوي مسائلو نه بحث کوي نوبه حيثيت نحوي سره بحث کوي ددي وجه نه مؤلف مِنْ حَيْثُ انه منطق قيد لږولي دي.

(٨)قوله " وهٰذَاالبحث " چونکه دمنطق غرض دشارح قول او حجت سره ترلي دي او دمجهولو تصوراتو او تصديقاتو معلومولو دپاره دخپلو معلوماتو قائمولو دپاره کار کول وي دي دپاره دالفاظو دبحث کولو نه څه غرض نشته دي مګر په شخصي قول سره دهغي نه لابدي او خلاصي نه وي چونکه انسان مدني الطبع واقع دي کوم چه دخپل مافي الضمير دنورو مخکښي وراندي کولو محتاجه وي لهٰذَا دته د الفاظو ضرورت هم وي.

برابر ده که مَنْطِقِيْ دي او که فلسفي يانحوي وي يا صرفي لهٰذَا اهـل منطـق ته هم دالفاظو ضرورت پيدا شو.

كَوْنُ الشَّيْءِ (۱)ء بِحَيْثُ يَلْزِمُ (۲) مِنَ الْعِلْمِ بِهِ الْعِلْمُ بِشَيْءٍ اٰخَرَ و

شته والي دداسي شي دي چه په داسي طور سره چه ددي په پيژندلو سره بَل شي پيژندلي

الدَّلَالَةُ لَهٗ قِسْمَانِ لَفْظِيَّةٌ وَ غَيْرُ لَفْظِيَّةٍ وَاللَّفْظِيَّة مَا يَكُوْنُ

شي او دلالت په دوه قسمه دي يو لفظي اوبَل غير لفظي لفظي هغه دي چه

الدَّالُ فِيْهِ اللَّفْظُ ، وَغَيْرُ اللَّفْظِيَّةِ مَا لَايَكُوْنُ الدَّالُ فِيْهِ اللَّفْظُ

دلالت كوونكي پدي لفظ وي او غير لفظي هغه دے چه پدي دلالت كوونكي غير

وكُلٌّ مِنْهُمَاعَلٰي ثَلَاثَةِ اَنْحَاءٍ اَحَدُهَا اللَّفْظِيَّةُ الْوَضْعِيَّةِ (۳) كَدَلَالَةِ

لفظ وي او هر يو ددوي نه په دري قسمه دي اول دلالت لفظيه وضعيه دي لكه دلالت

لَفْظِ زَيْدٍ عَلٰي مُسَمَّاهُ وَثَانِيْهَا اللَّفْظِيَّةِ الطَّبْعِيَّةُ (٤) كَدَلَالَةِ اُح

دلفظ زيد په خپل مسمي باندي دويم لفظيه طبعيه لكه دلالت داح اح

اُح بِضَمِّ الْهَمْزَةِ وَسُكُوْنِ الْحَاءِ الْمُهْمَلَةِ وَقِيْلَ بِفَتْحِهَا عَلٰي وَجْعِ

د همزي په ضمه او سكون دحا سره او بعضو وئيلي په فتحي سره دسيني په درد

الصَّدْرِ فَاِنَّ الطَّبِيْعَةَ تَضْطَرُّ بِاِحْدَاثِ هٰذَا اللَّفْظُ عِنْدَ عُرُوْضِ

خكه چه طبعيت دغه لفظ راپيداكولو ته محتاجه كوي په وخت دراولاړيدو د درد

الْوَجْعِ فِي الصَّدْرِ و ثَالِثُهَا اللَّفْظِيَّةِ الْوَضْعِيَّةِ الْعَقْلِيَّةِ كَدَلَالَةِ

كنبي دريم لفظيه عقليه دي لكه دلالت

لَفْظِ دَيْزٍ(٥) الْمَسْمُوْعِ مِنْ وَرَاءِ الْجِدَارِ عَلٰي وَجُوْدِ اللَّافِظِ

ددیز كوم چه دديوال دشانه واوريدل شي چه په وجود دلافظ

وَرَابِعُهَا غَيْرُ اللَّفْظِيَّةِ الْوَضْعِيَّةِ كَدَلَالَةِ الدَّوَالِ (٦) الْأَرْبَعِ عَلٰى

څلورم غير لفظيه وضعيه دي لکه دوال اربعه په خپلو مدلولاتو

مَدْلُوْلَاتِهَا وَخَامِسُهَا غَيْرُ اللَّفْظِيَّةِ الطَّبْعِيَّةِ كَدَلَالَةِ صُهَيْلِ

، پینځم غيرلفظيه طبعيه لکه شنهارکول

الْفَرَسِ عَلٰى طَلَبِ الْمَاءِ وَالْكَلَاءِ وَسَادِسُهَا الْغَيْرُ اللَّفْظِيَّةِ الْعَقْلِيَّةِ

داس دلالت په طلب داوبو چه اس تږي وي، وږي وي، شپږم غير لفظي عقلي

كَدَلَالَةِ الدُّخَانِ عَلَى النَّارِ فَهٰذِهٖ.

لکه دلالت دلوږي په اورباندي.

(۱)قوله " کون الشئ " دا د دلالت اصطلاحي تعريف دي حاصل يې دادي چه داديو شي هغه شان دا دلالت ويل کيږي چه هغه شي وپيژني چه دهغي شي دپيژندلو په وجه سره هغه بل شي اوپيژندل شي په کوم شي سره چه پيژندل شوي وي هغي ته دال ويل کيږي او کوم شي وربانديې پيژندل شوي وي هغي ته مدلول ويل کيږي دلالت مدلول ته تلل باندي موقوف دي ځکه تر څو پوري چه د مدلول علم نه وي شوي نو دلالت به ځنګه اوشي او مدلول به په دلالت ولې موقوف نه وي ځکه چه بغير د دلالت نه مدلول نشي مَوْجُوْدٌ کيدي لِهٰذَا دور به لازم شي او همدغه دور يې مثال دي لکه لوږي دال دي او اور مدلول دي تر څو پوري چه اور ته نه وي رسيدلي ترهغي پوري مونږ دلوږي نه په اور نشو پوهيدلي ددينه صفا معلومه شوه چه مدلول ته رسيدل په دلالت موقوف دي اوس ددي دويم پلو واخلې چه ددلالت داتعريف شو چه د دال ته تللو سره مدلول معلومول کيږي نو ددي نه صفا معلوميږي چه دمدلول پيژندل د دال په پيژندلو موقوف دي او

دلالت په مدلول موقوف دي لهذا دورلازم شو.
جواب: دا صحيح ده چه دمدلول پيژندل په دال باندي موقوف دي مکر دغه توقف على الاطلاق ندي بلکه د دال نه دحاصلولو په حيثيت سره دي او دلالت کوم چه دمدلول ته تللو موقوف دي نو دا توقف على الاطلاق دي لهذا دور لازم نشو.
(٢)**قوله "يَلْزِمُ"** لزوم په دوه قسمه دي ، يو عقلي، دويم عرفي، عقلي هغه دي چه لازم دملزوم نه هيڅکله جدا کيدي نشي لکه څلور دطاقونه څکه هر کله هرچيري چه دڅلورو عددوي نو جفت اوطاق به وي او لزوم عرفي ديته وائي چه عرفا لازم دملزوم نه نشي جداکيدي اکر چه عقلا دهغوي تلازم نه وي لکه دحاتم سخي کيدل چه عقلا دحاتم اوسخاترمينځ څه تلازم نشته څکه چه دحاتم تصور بغير دسخا دتصور نه کيدي شي مکر عرفا داسي ندي .
(٣)**قوله الوضعيه** وضع په لغت کښي کيښودلو تـه ويـل کيـږي او پـه اصطلاح کښي دوضع معني ده چه يوشي په داسي شان سره کيښودلي شي چه کله اوپيژني په ژبه اووائي نو هغه دويم شي پوهه شي حاصل دا دي چه دلالت وضعيه هغه دي چه دهغي په وضع کښي دواضع دخل وي برابـره ده چه کوم شي ديو شي دپاره وضع شوي ياشخص مَوْضُوْع دپـاره وضـع شـوي وي لکه زيد خاص کري شـوي دي وضـع شـوي دي يـايوڅو لفظونـه سره يوځاي کري وي او معني دي نه قائم کري لکه ضرب زيد چه پدي کـښي مجموعه الفاظو دمجموعه معني دپاره ندي وضع شـوي بلکـه ددي مفـردات دالفاظ دمفرداتو معني دپاره مَوْضُوْع شوي دي.
(٤)قوله "الطبعيه، دلالت طبعي هغه دي کوم چه دطبعيت پـه اقتـضاء سره

دي لکه دلالت داح اح اح دتوخې دپاره او اح په درد دلالت کوي او دا په افسوس دلالت کوي كذا في القاموس دمؤلف نه پدې کښې تسامح واقع شوې ده.

فائده: دا مثال د دلالت طبعي لفظي دي او دلالت طبعي غير لفظي لکه داس شنړار کول چه دلوري اويا تندي په وخت کښې کوي.

(٥)قوله "كَدَلَالَةِ لفظ ديز "لکه ديته دلالت عقلي پدې وجه ويل کيږي چه پدې کښې دوضع او طبع دخل نه وي.

**تنبيه**: چيرته چه د دلالت تاثير وي هغه هم دلالت عقلي وي لکه دلالت دلوري په اور باندې چه دا دلالت اثر په موثر دي او يا داسې دمؤثر په اثر او داسې دلالت ته مثلا لکه دلوري په گرمي دي.

(٦)**قوله كَدَلَالَةِ الدوال الاربع**، ددې الفاظ نشته مگر دا په دلالت کښې په معلولاتو خپلو وضع شوي دي د دوال اربعه نه مراد څلور شيان دي: يو دلارو نشانات کوم چه د فرسخ په اندازه لريدلي وي ديته نصب ويل کيږي ، دويم خطوط، دريم اشارات، څلورم عقود يعني دگوتو دجوړونو نه د شمير معلومولو دپاره وضع شوي وي.

| سِتٌّ(١) دَلَالَاتٍ وَالْمَنْطِقِيُّ اِنَّمَايَبْحَثُ عَنِ الدَّلَالَةِ اللَّفْظِيَّةِ |
|---|

پس دغه شپږ قسمه دلالتونه دي او منطقيان ددلالت لفظيه وضعيه نه بحث کوي

| الْوَضْعِيَّةِ لِاَنَّ الْاِفَادَةَ لِلْغَيْرِ وَالْاِسْتِفَادَةَ مِنَ الْغَيْرِ اِنَّمَايَتَيَسَّرُ بِهِمَا |
|---|

ځکه فائده او استفاده بل نه په الناظو سره په اسانه حاصليږي

| بِسَهُوْلَةٍ (٢) بِخِلَافِ غَيْرِهَا فَاِنَّ الْاِفَادَةَ وَالْاِسْتِفَادَةَ بِهَا لَايَخْلُوْ |
|---|

په خلاف دنورو ځکه چه دنورو نه فايده او استفاده دغير نه په سختۍ سره

عَنْ صَعُوْبَةٍ بِهِ ، هٰذَا فَصْلٌ وَيَنْبَغِي اَنْ يَعْلَمَ اَنَّ الدَّلَالَةَ اللَّفْظِيَّةَ
حاصليږي. فصل: ددي پيژندل ضروري دي چه دلالت لفظيه

الْوَضْعِيَّةُ الَّتِيْ لَهَا الْعِبْرَةُ فِي الْمَحَاوَرَاتِ (٤) والْعُلُوْمُ عَلٰى ثَلَاثَةِ (٥)
وضعيه هغه دي كوم ته چه په محاوراتو كښي اعتبار وايي او دا علوم په دري

اَنْحَاءٍ اَحَدُهَا المطابقة وَهِيَ اَن يَّدُلَّ اللَّفْظُ (٦) عَلٰى تَمَامِ مَا وُضِعَ
قسمه دي اول مطابق دي او دا هغه دي چه لفظ دلالت وكړي په ټول ماوضع له

لَهُ ذٰلِكَ اللَّفْظُ لَهُ كَدَلَالَةِ الْاِنْسَانِ عَلٰي مَجْمُوْعِ الْحَيْوَانِ وَالنَّاطِقِ
لكه دلالت دلفظ انسان په مَجْمُوْعُ حيوان باندي اوناطق باندي

وثَانِيْهَا التَّضَمُّنِيَّةُ وَهِيَ اَن يَّدُلَّ اللَّفْظُ (٧) عَلٰى جُزْءِ الْمَعْنٰى
دويم قسم تضمني دي او دا هغه دلالت‌دي چه لفظ په جزء دماوضع له دلالت وكړي

الْمَوْضُوْعِ لَهُ كَدَلَالَةِ الْحَيْوَانَ فَقَطْ وَعَلَي النَّاطِقِ فَقَطْ وثَالِثُهَا
لكه د انسان دلالت په صرف حيوان باندي اويا صرف په ناطق باندي دريم قسم

الدَّلَالَةَ الْاِلْتِزَامِيَّةِ وَهِيَ اَن لَّا يَدُلَّ اللَّفْظُ عَلَي الْمَوْضُوْعِ لَهُ
دلالت التزاميه دي او دا هغه دي كوم چه دلالت ونكړي لفظ په تمام ماوضع له

وَلَا عَلٰى جُزْئِهِ بَلْ عَلٰى مَعْنٰي خَارِجٍ لَازِمٍ(٨) لِلْمَوْضُوْعِ لَهُ
باندي او نه په جزء بلكه دلالت وكړي په معني خارج لازم مَوْضُوْعِ له باندي

وَاللَّازِمُ هُوَ مَا يَنْتَقِلُ الذِّهْنُ مِنَ الْمَوْضُوْعِ لَهُ اِلَيْهِ كَدَلَالَةِ
اولازم هغه دي كوم سره چه ذهن مَوْضُوْع له ته منتقل شي لكه دلالت

| الْإِنْسَانِ عَلٰى قَابِلِ الْعِلْمِ وَصَنْعَةُ الْكِتَابَةِ. |
|---|

دلفظ انسان په قابل عالم او صنعت دكتابت.

(۱)قوله "فهذه ستة دلالات، يعني دا شپږ دلالتونه دي مګر دا شپږ استقرائي دي عقلي ندي چه ددي نه زيات ياكم كيدلي نشي لكه څنګه چه سيد سند صرف دپنځو قائل دي او دطبعي غير عقلي نه منكر دي كماصرح في حاشية شرح المطالع هغه فرمائي چه دلالت عقلي لفظي او غير لفظي كيدي شي مګر دلالت طبعي صرف لفظي كيدلي شي غالبا ددي بيانولو وجه داده چه كوم ته دلالت طبعي غير لفظي وائي هلته داثر دلالت په مؤثروي لكه دخجالت په وخت كښي درنګ بدليدل او سور كيدل او ياد يري په وخت كښي زړيدل دادمحقق دواني وينااده دا دلالت طبعي دي مګر دا كوم وزني اختلاف ندي ځكه دطبعيت په اقتضاء سره زيږوالي لاحق دي وجه همدغه دلالت طبعي دي او چونكه ددي په پيژندلو كښي دعقل دخل هم وي دي وجه نه ديته عقلي ويل كيږي پس لكه څنګه چه دلالت لفظي طبعي كيدي شي همدغه شان دلالت عقلي هم طبعي كيدي شي.

(۲)قوله " بسهولة " ددي دا مطلب دي چه دهمدغه دلالت لفظي وضعي نه تول كارونه راويستلي شي او په تفصيل سره تعليم او تعلم په اساني سره كيدي شي اګر چه دهر شي دپوهي او پوهولو دپاره د دلالت طبعي يا ددلالت عقلي نه كار واخستل شي نو داغه دقت وي او ترخوپوري چه متصورنه وي حاصل شوي نو دي دپاره دمنطقي په نظر كښي صرف په دلالت لفظي وضعي باندي وي.

(۳)قوله " هٰذَا" داد ، فعل محذوف مفعول دي يعني خذهٰذَايا احفظ هٰذَايعني ته دا زده كړه او محفوظ يي كړه او ددي نه يوبل احتمال هم پيدا كيږي اګر

چه رسم خط دانشي تحمل کولي چه صرف یوازي ها په معني دخذ سره اسم فعل وي او زا اسم اشاره ددي مفعول وي.

**(٤)قوله " في المحاورات "** بعضي دا وائي چه په علومو کښي دلالت تضمني غير معتبر دي.

**(٥)قوله " علي ثلثة اَلْحَاءِ "** دایو عقلي حصر دي په کوم کښي چه دخلورم شق احتمال نشته دي وجه دحصرداده چه لفظ مدلول اکر چه عین مَوْضُوْع له وي نودا دلالت مطابقي دي او که چري مَوْضُوْع نه وي نو دا دلالت تضمني دي او که چري جزء مَوْضُوْع له دنه خارج وي نودا دلالت التزامي دي.

**(٦)قوله " علي تمام الخ "**دلته يو اشکال دي چه مثلا شمس دافتاب دپاره هم مَوْضُوْع دي او دشعاعودپاره هم مَوْضُوْع دي کوم چه لازم دي نو پدي صورت کښي تر څوپوري چه دشمس اطلاق په شعاعو لازم کولو حیثیت سره وکړي شي نو دا به دلالت التزامي وي حالانکه ذلالت دلته په تولو ما وضع مَوْجُوْدٌ دي نو ددي جواب دادي چه دغه دلالت اکر چه په تول ماوضع باندي دي ليکن دا مِنْ حَيْثُ انه لازم دي دمِنْ حَيْثُ انه تمام ماوضع ندي لِهٰذَا که چرته مؤلف دحیثیت قید لرولي وي نو بهتر به وو.

**(٧)قوله " اَن يَّدُلَّ اللَّفْظُ "** د دلالت تضمني په باره کښي دوه مذهبونه دي، يو منطقيان هغي ته وائي چه هغه کښي جزء دمَوْضُوْع باندي دلالت کول کوي کافي وي اکر چه دهغه قصد هم نه وي. دويم مذهب داهل عربيت دي پدي کښي ددي شرط ندي او درولي فتامل وعن الراجح المرجوح.

**(٨)قوله " لازم للمَوْضُوْع "** په دلالت التزامي کښي دمدلول لازم کيدل

دمَوْضُوْع دپاره دي دي، دپاره ضروري دي چه لفظ دکومي معني دپاره وضع کړي شوي وي ددي نه بغير په بل کوم امر خارج باندي دده دلالت کولو دپاره دکومي علاقي ضرورت دي لِهٰذَا هغه علاقه دلزوم ذهن ده تر څو چه کله دلفظ مَوْضُوْع معني تصور وي نو هغه امر خارج تصور به هم وي.

وَلِدَلَالَةِ(۱) لَفْظِ الْعَمِي عَلَى البصر **فصل** : (۲)الدَّلَالَةُ الْاِلْتِزَامِيَّةُ

او لکه دلالت دعمي په بصرباندي. فصل: دلالت تضني او دلالت التزامي

وَالتَّضَمُّنِيَّةُ لَا تُوْجَدَانِ بِدُوْنِ الْمُطَابَقَةِ وَذٰلِكَ لِاَنَّ الْجُزْءَ

بغير دمطابق نه نشي مَوْجُوْدْ کيدي او دا ځکه چه جزء

لَا يَتَصَوَّرُ بِدُوْنِ الْمَلْزُوْمِ وَالتَّابِعُ لَايُوْجَدُ بِدُوْنِ الْمَتْبُوْعِ

دکل نه بغير نشي مَوْجُوْد کيدي او همدارنګه لازم بغير دملزوم نه او تابع بغير دمبتوع

وَالْمُطَابَقَةُ قَدْ تُوْجَدُ بِدُوْنِ هَا لِجَوَازِ اَن يُوضَعُ اللَّفْظُ لِمَعْنَي

نه نشي مَوْجُوْدْ کيدي او مطابقي کله کله بغير ددوي نه مَوْجُوْدْ کيدي شي ځکه چه لفظ

بَسِيْطٍ لَا جُزْءَ لَهُ وَلَا لَازِمَ لَهُ فَاِنْ قُلْتَ

ديو بسيطي معني دپاره وضع کيدي شي چه نه دهغي جزءوي او نه يي لازم وي که ته

لَا نُسَلِّمُ (۳) ان يُوْجَدَ مَعْنِي لَا لَازِمَ لَهُ فَاِنَّ

داوائي چه زه دانه تسليموم چه معني دي موجوده شي او دهغي لازم دي نه وي ځکه

لِكُلِّ مَعْنِي لَازِمًا اَلْبَتَّةَ وَاَقَلُّهُ اِنَّهُ لَيْسَ غَيْرُهُ قُلْنَا

دهري معني لازم خامخا وي او کم ترين دادي چه بله معني دغير نه وي مونږ جواب

الْمُرَادُ بِاللَّازِمِ هُوَ اللَّازِمُ الْبَيِّنِ الَّذِيْ يَنْتَقِلُ الذِّهْنُ مِنَ الْمَلْزُوْمِ

ورکوو مراد دلازم نه لازم بَيِّنْ دي او دا هغه دي چه ذهن ته دملزوم نه نقل شي

اِلَيْهِ وَقَوْلِكَ لَيْسَ غَيْرُهُ لَيْسَ مِنَ اللَّازِمِ الْبَيِّنَةِ لِاَنَّا كَثِيْرًا مَّا

او ستا دا وينا چه دغير معني نلري دلازم بَيِّن نه نه وي خکه چه ډير خله

نَتَصَوَّرُ الْمَعَانِيْ وَلَا يَخْطُرُ بِبَالِنَا مَعْنَى الْغَيْرِ فَضْلًا عَنْ كَوْنِهِ

مونږ ددي معني تصور زيات کوو او دغير دمعني تصور مونږ نه کوو دلوازم بينه نه ندي

لَيْسَ غَيْرُهُ.**فصل**: (۴)اللَّفْظُ الدَّالَّةُ اِمَّا مُفْرَدٌ وَاِمَّا

نو دغير موجوديت څه ضروري دي. هغه لفظ چه دلالت کوي يا به مفرد وي يابه

مُرَكَّبٌ فَالْمُفْرَدُ(۵) مَا لَا يَقْصُدُ بِجُزْئِهِ الدَّلَالَةَ عَلٰى جُزْءِ مَعْنَاهُ

مرکب وي مفرد هغه لفظ دے چه دمعني په جزء مقصود دمعني جزء نه وي

كَدَلَالَةِ هَمْزَةِ الْاِسْتِفْهَامِ عَلٰى مَعْنَاهُ وَدَلَالَةُ زَيْدٍ عَلٰى مُسَمَّاهُ

لکه همزه داستفهام په خپله معني باندي او دلالت دزيد په خپله مسي باندي

وَدَلَالَةُ عَبْدُ اللهِ عَلَى الْمَعْنَى الْعَلَمِيْ اَلْمُرَكَّب مَا يَقْصُدُ بِجُزْئِهِ

او دلالت دلفظ عبدالله په خپله علمي معني باندي او مرکب هغه دي چه ددي په جزء

الدَّلَالَةَ عَلٰى جُزْءِ مَعْنَاهُ كَدَلَالَةِ زَيْدٌ قَائِمٌ عَلٰى مَعْنَاهُ اَوْ

سره دمعني جزء مقصود کيدي شي لکه لفظ دزَيْدٌ قَائِمٌ په خپله معني باندي او يا

دَلَالَةُ رَامِي السَّهْمِ عَلٰى فَحْوَاهُ ثُمَّ الْمُفْرَدُ(٦) عَلٰى ثَلَاثَةِ اَنْحَاءٍ لِاَنَّهُ

دلالت د رامي السهم په خپل مفهوم باندي بيا مفرد په دري قسمه دي خکه

اِنْ كَانَ مَعْنَاهُ مُسْتَقِلًّا بِالْمَفْهُوْمِيَّةِ اَيْ لَمْ يَكُنْ فِيْ فَهْمِهِ مُحْتَاجًا

کچري دغه لفظ په مفهوميت خپل مستقل وي يعني په خپله معني کنبي ضم دغير ته

إِلٰى ضَمِّ ضَمِيْمَةٍ فَهُوَ اِسْمٌ اِنْ لَمْ يَقْتَرِنْ ذٰلِكَ الْمَعْنٰى بِزَمَانٍ مِنَ

محتاج نه وي نو دا اسم دي كچري په يو ددري زمانو پوري مقترن نه وي

الْاَزْمِنَةِ الثَّلَاثَةِ وَكَلِمَةٌ اِنْ اِقْتَرَنَ بِهٖ وَاِنْ.

اوكلمه به وي كچري مقترن وي په زمانو پوري.

(۱)قوله " كدلالة لفظ العمي " (سوال) عمي عدم البصر ته ويل كيږي پس بصرجزء دعمي شو لهٰذا دا مثال د دلالت تضمني دي نه د دلالت التزامي (جواب) اوكه چيرته عمي عدم او دبصر مجموعه وي نو اشكال صحيح وو او كله چه عمي دعدم بصر نوم دي نو دبصرنفي كوي نو بيا دبصر جزء څنګه شو.

(۲)قوله " فصل " پدي فصل كښي مصنف د دري دلالتونو ترمنځه نسبتونه بيان كړي دي مګر دا بيان يې ندي كړي چه ددلالت تضمني اودلالت التزامي ترمينځ څه نسبت دي لهٰذا ددي بيانول هم پكار دي چه ددوي ترمنځه نسبت دعُمُوْمْ وَخُصُوْصْ مِنْ وَجْهٍ دي څكه چه كله معني بسيطه وي او دهغي دپاره لازم ذهن هم وي نو دغه ماده افتراقي من جهة التضمن شوه او كله معني مركبه وي مګر دي دپاره لازم ذهني نه وي نو دا ماده افتراقي من جهة التزام شوه او كله په معني مركب سره وي او دهغي دپاره لازم ذهن هم وي نو دا ماده اجتماعي شوه.

(۳)قوله " فان قلت " دا دفخرالدين رازي اعتراض دي چه حاصل يې دادي چه مونږ دانه تسليمو چه دلالت مطابقي د دلالت التزامي نه بغيرمَوْجُوْدْ كړي شي څكه چه دهري معني لازم كيدل ضروري وي چه ددي كم نه كم درجه داده چه هغه دخپل نه بغير نشي قائم كيدي دا اعتراض صحيح

دي اگر چه ددي په جواب ورکولو کښي کوشش شوي دي مگر دا کوشش بې فائدي دي.

**(٤)قوله " فصل "** ددي ځاي نه مصنف لفظ دال مَوْضُوْع دبالمطابقې تقسيم کوي لکه چه وائي چه لفظ په دوه قسمه دي مفرد مرکب دمفرد مرکب دا تقسيم پدي وجه اوکړو چه معلومه شي چه داد دشارح دقول اجزاء دي او دحجت دپاره دخومرکبونو ضرورت دي.

(٥)قوله "فالْمُفْرَد " چونکه مفرد جز دي او مرکب کل دي او مفرد يې ددي وجه نه مخکښي زکر کړو ځکه چه جز په کل مقدم دي.

فائده: دمفرد څلور اقسام دي يو دکوم چه بالکل جزء نه وي لکه همزه استفهام ، دويم جزء وي مگر دهغي دلالت نه وي لکه زيد چه هغي کښي څو څو حروف دي مگر دهغي جدا جدا معني نه وي، دريم جزء وي مگر په جزء دمعني دلالت نه کوي لکه عبدالله چه دچا نوم وي، څلورم جزء هم وي او دجزء په معني هم دلالت کوي مگر هغه دلالت مقصود نه وي لکه حيوان ناطق چه دچا نوم وي.

**(٥)قوله " ثم الْمُفْرَد علي الْحَاءِ "** دلته نه مؤلف دمفرد تقسيم کوي او دا بعينه هغه تقسيم دي کوم چه نحويان دکلمې کوي مگر فرق صرف دومره دي چه منطقيان دمفرد تقسيم کوي او نحويان ديته کلمه وائي چه ديته منطقيان کلمه وائي او نحويان ورته فعل وائي ددي تقسيم حاصل دادي چه دمفرد معني که چرې مستقل بالمفهوميت وي نو ددي دوه صورتونه دي يو هغه دي چه په کوم کښي زمانه موجوده وي دويم صورت دادي چه په هغې کښي زمانه نه وي که اولني صورت وي نو هغه کلمه ده او که دويم صورت وي نو اسم دي او که دمفرد معني مستقل بالمفهوميت نه وي نو هغه ادات

دي چه دي ته نحويان حرف وائي په صبح او شام كبني دزماني معني.
موجوده ده مگر دا كلمه نده لكه اسم دي ليكن دكلي تعريف دخول دغيرنه
مانع نشو او د اسم تعريف خپلو افرادو ته جامع نشو جواب دا صحيح ندي
چه په صبح او شام كبني دزماني معني موجوده ده خكه چه دا په خپله
دزماني نامي دي نه دا چه ددي بله كومه معني ده او په هغي كبني زمانه
موجوده ده.

**فائده:** دا چه مونږ كوم اووئيل كوم چه داهل منطق په نزد كلمه ده دنحويانو
په نزد فعل دي دا په خپل مينځ كبني لازم او ملزوم نه وي خكه چه
نضرب صيغه دمتكلم مثلا اونحويانو په نزد فعل دي مگر دمنطقيانو په نزد
كلمه نده خكه چه ديته مفردنه ويل كيږي بلكه مركب ئي گڼري دي دپاره
چه ددي جزء لفظ په جز معني دلالت كوي لكه چه نون دمتكلم په معني
دلالت كوي او ضرب په مصدري معني په وهلو دلالت كوي.

لَمْ يَكُنْ مَعْنَاهُ مُسْتَقِلًّا فَهُوَ اَدَاةٌ فِيْ عُرْفِ الْمِيْزَانِيِّيْنَ

او كه ددي مفرد معني مفهوم نه وي نو دا ادات دي داهل منطق په اصطلاح كبني

وَحَرْفٌ فِيْ اِصْطِلَاحِ النَّحْوِيِّيْنَ. **هٰذَا فَصْلٌ** : اِعْلَمْ (۱) اِنَّهٗ قَدْ ظَنَّ

اود نحويانو په اصطلاح كبني حروف دي. فصل: په دي پوهه شه چه خنو خلقو دا خيال

بَعْضُهُمْ اَنَّ الْكَلِمَةَ عِنْدَ اَهْلِ الْمِيْزَانِ هِيَ مَا يُسَمّٰى فِيْ عِلْمِ النَّحْوِ

كړے دے چه دغه كلمه داهل منطق په نزد هغه ده كوم چه په علم نحو كبني

بِالْفِعْلِ وَلَيْسَ هٰذَا الظَّنُّ بِصَوَابٍ فَاِنَّ الْفِعْلَ اَعَمُّ مِنَ الْكَلِمَةِ

په فعل سره مسمي دي حالانكه دا خيال درست او صحيح نه دے خكه فعل دكلمي نه

اَلَاتَرٰي اِنَّ نَحْوَ اَضْرِبُ وَنَضْرِبُ وَاَمْثَالُه
ربات عام دے. اي مخاطبه ايا تانه دا په نظرنه راخي چه اضرب او نضرب او مثالونه ددي

فِعْلٌ عِنْدَ النُّحَاةِ وَلَيْسَ بِكَلِمَةٍ عِنْدَ الْمَنْطِقِيِّيْنَ لِاَنَّ الْكَلِمَةَ
دنحويانو په نزد فعلونه دي او داهل منطق په نزد كلمې ندي خكه چه كلمه

مِنْ اَقْسَامِ الْمُفْرَدِ وَنَحْوَ اِضْرِبُ لَيْسَ بِمُفْرَدٍ بَلْ هُوَ مُرَكَّبٌ
داقسامو دمفرد نه ده لكه دمثال په طور اضرب مفرد ندي بلكه دا مركب دي

لِدَلَالَةِ جُزْءِ اللَّفْظِ عَلٰي جزء الْمَعْنٰي فَاِنَّ الْهَمْزَةَ تَدُلُّ عَلَي الْمُتَكَلِّمِ
نه وجه د دلالت دجزء دلفظ په جزء دمعني باندي خكه چه همزه دلالت په متكلم كوي

وض ر ب عَلَي الْمَعْنٰي الْحَدَثِ.**فصل**: (٢) قَدْ يُقَسَّمُ (٣) الْمُفْرَدُ
او ض ، ر، ب په معني دحدث دلالت كوي. كله كله مفرد په بل قسم تقسيميري

بِتَقْسِيْمٍ اٰخَرَ وَهُوَ اَنَّ الْمُفْرَدَ اِمَّا اَنْ يَكُوْنَ مَعْنَاهُ وَاحِدًا اَوْ
او هغه دادي چه يابه دمفرد معني يوه وي او يابه دواحد نه

يَكُوْنُ كَثِيْرًا وَالَّذِيْ لَهُ مَعْنٰي وَاحِدٌ عَلٰي ثَلَاثَةِ اَضْرُبٍ لِاَنَّهُ لَا
په زياتو معني دلالت كوي دا په دري قسمه دي خكه دابه

يَخْلُو اِمَّا اَن يَكُوْنَ ذٰلِكَ الْمَعْنٰي مُتَعَيَّنًا مُشَخَّصًا اَوْ لَمْ يَكُنْ
خالي نه وي يا به دغه معني متعينه منشخصه وي اويابه نه وي

وَ الْاَوَّلُ يُسَمّٰي عِلْمًا كَزَيْدٍ وهٰذَا وَهُوَ وَالْاَوْلٰي(٤) اَن يُسَمّٰي هٰذَا
اولني په علم مسمي دي لكه زيد او هٰذا او هو بهتره داده چه دا قسم په جزئي حقيقي سره

الْقِسْمُ بِالْجُزْئِيْ الْحَقِيْقِيْ وَالثَّانِيْ اَيْ مَا لَا يَكُوْنُ مَعْنَاهُ الْوَاحِدُ

مسمی کړي شي ، دوېم قسم هغه دي چه يوه معني بې نه وي مشخصه

مُشَخَّصًا بَلْ يَكُوْنُ لَهُ اَفْرَادٌ كَثِيْرَةٌ هُوَ ضَرْبَانِ اَحَدُهَا اَنْ يَكُوْنَ

بلکه ددې افراد کثير وي او دا په دوه قسمه دي يو قسم دادې چه

صِدْقُ ذٰلِكَ الْمَعْنٰى عَلٰى سَائِرِ اَفْرَادِهٖ عَلٰى سَبِيْلِ الْاِسْتِوَاءِ.

يا به په ټولو افرادو صادق وي په برابرۍ سره بغير دفرق نه په اوليت وي په برابر سره.

(۱)قوله ''اِعْلَمْ'' پدې فعل کنبې مؤلف ديوې غلط فهمي ازاله کوي او هغه غلط فهمي داده چه ځنې اصحاب دا ګنړي چه منطقيان کوم ته فعل وائي بعينه هغه دنحويانو په نزد کلمه ده دا صرف دنوم فرق دې نو همدغه دواړه يوشي دي په کوم کښې چه خپل مينځ کښې دنسبت تساوي نه مصنف ترديد کوي چه حاصل يې دادي چه د دواړو ترمنځه دتساوي نسبت ګنړل صحيح ندي بلکه دعموم او خصوص مطلق نسبت دي دي نه فعل عام دي او کلمه (منطقي) خاص ده دمثال په طور داسې ګنړي چه مثلا اضرب دنحويانو په نزد فعل (صيغه واحد متکلم مضارع معروف) ده مګردمنطقيانو په نزد کلمه نده ځکه چه دې سره کلمه هم داقسامو دمفرد ځنې دي اواضرب دمنطقيانويه نزد مفرد ندي ځکه چه جزولفظ په جزء د معني دلالت کوي دې دپاره دهمزې دلالت په متکلم کوي او دضرب دلالت معني مصدري باندې دي او داختلاف وجه داده چه دنحويانو په نزد بحث بالقصد الفاظ نه ندي اودمعني دطرفه بالتبع متوجه وي نو چونکه په نضرب او اضرب کښې هم ديضرب پشان لفظي تصرفات وي دي وجه نه چه دافعل په همدې کښې داخل وي او چونکه دمنطقيانو بحث دمعنی ګانو نه دې دې وجه نه دوي چه معني ګانو ته وکتل نو معني دمرکب

راووتله لِهٰذَا او مرکب کولو په اعتبار دمفرد اقسامو نه خارج کړل همدارنګه داضرب او نضرب او تضرب دقضیه معني راکوي ځکه په دي کښي احتمال دصدق او کذب مَوْجُوْدْ دي نو پس کله قضیه شوه نو بیا مفرد څنګه کیدي شي.

تنبیه: یضرب (صیغه واحد مذکرغائب) او تضرب صیغه واحد مؤنث غائب) دمنطقیانو په نزد هم کلمي ندي دي دپاره چه تر څو پوري دي مسند الیه ذکرنه وي شوي مجلد نه جوړیږي خلاف اضرب او نضرب او تضرب (صیغه واحد مذکر حاضر) چه پدي کښي مسند الیه مَوْجُوْدْ ده ددي صاف اوښکاره دلیل دادي چه کښي دنا او نضرب کښي نحن او تضرب کښي انت مستفاد شوي دي پس که چري ضمیر مرفوع منفصل (یعني انا انت او نحن) دذکر نه مخکښي په اصل کلمه کښي مسند الیه نه وي نو بیا به تاکید معني به مستناد شوي نه وي.

(۲)قوله " فصل " پدي نصل کښي مؤلف دمفرد دویم تقسیم بیانوي اولني تقسیم استقلال دمعني او عدم استقلال معني او اقتران بالزمان او عدم لحاظ نه دي او دا تقسیم په لحاظ دوحدت معني او تعدد معني سره دي پدي فصل کښي او ددي نه روستني فصل کښي مصنف دمفرداتو اوه قسمونه بیانوي، اول جزئي حقیقي، دویم مشکك، دریم متوسطي، څلورم مشترك، پنځم منقول، شپږم حقیقیه، اوم مجاز ددي اقسامو، تقسیم څه شي دي ایا مفرد مطلق یا ددي کوم خاص قسم دي، پدي باره کښي اختلاف دي ځني دا وائي چه دکلمي جزئي متواسطي مشکك مقسم صرف اسم دي او دمشترك منقول حقیقت او مجاز تقسیم مطلق مفرد دي. او همدا مشهور قول دي او دصاحب سلم بهاري صاحب دا وینا ده، چه مجاز بالذات صرف همدغه اسم

کيدي شي اوفعل او نور مشتقات همدارنګه صرف بالتبع متصف بالمجاز کيدي شي.

(۳)**قوله "وَقَدْ يقسم "** مؤلف پدي فصل کښي دمفرد دوه قسم بيان کړي دي او بيايي دهر يو قسم تقسيم کړي دي اولني قسمه دادي چه دمفرد يوه معني ده او دا په دري قسمه دي، اول جزئي، دويم متواطي، دريم مشکك او دويم قسم دادي چه دمفرد معني کثير ده او ددي څلور قسمه دي، اول مشترك دويم منقول، دريم حقيقت، څلورم مجاز ددي تعريفات مؤلف په واضحه ډول بيان کړي دي مګر اوس يو نوي فائده درته بيانوي او هغه داده چه پدي دوه تقسيماتو کښي ديو تقسيم افراد د دويم تقسيم دافرادو سره جمع کيدي شي مثلا جزئي مشترك او منقول کيدي شي مګر ديو تقسيم يو فرد د دويم فرد سره نشي جمع کيدي مثلا جزئي متواطي او مشکك نشي کيدي.

(٤)**قوله " والاولي "** يعني دمفرد کوم قسم ته چه علم ويل کيږي نو ديته جزئي حقيقي ويل بهتر دي دي دپاره چه اسماء اشارات او ضمائر کوم چه پدي قسم کښي داخل دي هغه ددي نه خارج نشي دي دپاره چه پدي کښي همدغه وضع عام اومَوْضُوْع خاص ده ، ځکه چه دا دهر يو لکل واحد من الجزئيات دپاره موضوع ده پس که چري دقسم مذکوره نوم علم کينبودلي شي نو اسماء اشارات او ضمائرو ته به دانوم شامل نه وي ځکه چه اصطلاحا دا دواړه اعلام ندي.

مِنْ غَيْرِ(١) اَن يَتَفَاوَتَ بَاوَّلِيَّةِ اَوْ اَوْلَوِيَّةٍ اَوْ اَشَدِيَّةٍ اَوْ اَزيدِيَّةٍ (٢)

بغير دفرق نه به اولويت او يا سخت اولويت

وَيُسَمّٰي هٰذَا الْقِسْمُ بِالْمُتَوَاطِيْ لِتَوَاطُؤِ اَفْرَادِهٖ وَتَوَافُقِهَا فِيْ تَصَادُقِ

او دا به متواطي سره مسمي دي دوجي دبرابري اوموافقت به تولو معني كانو سره

ذٰلِكَ الْمَعْنٰى الْعَامِ كَالْاِنْسَانِ بِالنِّسْبَةِ اِلٰي زَيْدٍ وَعَمْرٍو وَبَكْرٍ

لكه انسان په نسبت سره زيد ، عمرو، بكرته

وَثَانِيْهِمَا اَن لَّا يَكُوْنُ صِدقُ ذٰلِكَ الْمَعْنٰى الْعَامِ فِيْ جَمِيْعِ اَفْرَادِهٖ

دويم قسم دي چه په تولو په استواء سره صدق نه كيږي

عَلٰى وَجْهِ الْاِسْتِوَاءِبَلْ يَكُوْنُ صِدقُ ذٰلِكَ الْمَعْنٰى عَلٰى بَعْضِ

بلكه په بعضي افرادو په اولويت سره صادق كيږي او په بعضو په غير اولويت سره

الْاَفْرَادِ بِالْاَوْلَوِيَّةِ اَوِ الْاَشَدِيَّةِ او الْاَوْلَوِيَّةِ وَصِدقِ هُمَا عَلٰي

په افرادو په اولويت او اشديت او اوليت او صدق ددوئ په

الْبَعْضِ الْاٰخَرِ بِاَضْدَادِ ذٰلِكَ كَالْوُجُوْدِ (٣) بِالنِّسْبَةِ اِلَي الْوَاجِبِ

بعضو نورو او په اضدادو ددي سره لكه وجود په نسبت سره واجب جل مجده ته

جَلَّ مَجْدُهٗ وَبِالنِّسْبَةِ اِلَي الْمُمْكِنِ وَكَالْبَيَاضِ بِالنِّسْبَةِ اِلَي الثَّلْجِ

او په نسبت سره ممكن ته او يا لكه بياض په نسبت سره واوري ته

وَالْعَاجِ وَيُسَمّٰي (٤) هٰذَا الْقِسْمُ مُشَكِّكًا لِاَنَّهٗ (٥) يُوْقِعُ النَّاظِرَ.

او عاج ته او مسمي كولې شي دا قسم په مشكك خكه چه كتونكي په شك كښي واقع كوي

(١) قوله "من غيران يتفاوت باولية" د اوليت دا مطلب دي چه دكې ديو

فرد دپاره ثابتول د دويم فرد ثابتولو دپاره علت وي لکه وجود يو کلي دي نو دپلار دثبوت دپاره دزوي دوجي دثبوت علت دي او داولېت دا مطلب دي چه دکلي ثبوت بعضي افراد ياد نفس ذات دپاره بالذات وي او دبعضي دپاره بالغيروي لکه همدغه رنړا نمر دپاره ددي ثبوت بالذات وي او دځمکي دپاره بالغير دنمر په واسطه سره دي او د اشدية مطلب دادي چه ديو کلي مقابله کنبي دده افرادمقابله کړي نو دعقل دپاره دا ممکن دي چه ديو فرد نه بل فرد ډير امثال خارج کولي شي کوم چه غير ممايزفي الوضع وي او ددي ضد اضعفيت دي مثلا سپينوالي که چرې دواوري يا خيرنو جامو اوکړي او دخپل غانبونو مقابله وکړي شي نو نفس سپينوالي دي په واوره کنبي مؤجُوْدُ دي چه دعقل دا حکم دي چه په دومره مقدار مؤجُوْدْ دي چه درخت او کپړي سپينوالي دهري درجي برابر دي او په واوره کنبي سپينوالي اشد دي او دفيل دغانبونو سپينوالي اضعف دي.

**(۲)قوله "او ازيديته"** د ازيديت دا مطلب دي چه دکلي د دوه افرادو په مقَابِلِ کنبي شي نو دعقل دپاره دا ممکن دي چه ديو فرد نه بل فرد دغه شان ډير افراد خارج کړي شي مګر دا امثال ممايز فِي الوضع وي مثلا يوګز او خلور ګزه دي خلورو ګزو کنبي يوګز فرد مؤجُوْدُ دي.

**فائده:** دمشائينو دا مذهب دي چه شدت مختص بالکيف او زيادت په بالکم دي مګر اشراقين ددي فرق قائل ندي.

**فائده:** دشدت مقَابِلِ ضعف دي او دزيات مقَابِلِ نقصان دي.

**(۳)قوله "کالوجود"** او د اوليت وجود مشکك مثال کيدي شي ځکه چه ددي ثبوت دواجب تعالي دپاره او مثلا بالذات دي او دممکن دپاره بالغير دي چه دواجب تعالي دعنايت نه پيدا شوي دي.

**فائده**: تشکیك في الوجود په شدت او ضعف کښې نشي کیدي ځکه چه اشد او اضعف دوه متبائن او مختلف قسمونه دي پس که چرې دوجود او دوجود اضعف دپاره وجود مطلق قرار ورکړې شي نو فصل ته به هم ضرورت پیدا کړې شي لهٰذا د دواړو مرکب کیدل به لازم شي ولَیْسَ الامر کذٰلِكَ ځکه چه که چرې ددې مرکب کیدل تسلیم کړې شي نو ضرور به وجود اشد دواجب تعالیٰ دپاره تسلیم کړې شي لهٰذا دواجب تعالیٰ مرکب کیدل به واقع شي او دا محال دي او که دوجود اشد او اوجود اضعف دپاره مطلق وجود عرض کیدل تسلیم کړې نو ددې حقیقت به غیر دموجود مطلق شي نو ددې نه به دا لازم شي چه وجود اشد او وجود اضعف کوم چه دوجود مطلق تسلیم کړې وو هغه به په خپل تقسیم کښې مختلف في الحقیقت شي او دا ښکاره باطل دي لهٰذا دا متعین شوه چه په وجود کښې تشکیك نشي کیدي.

**(٤)قوله "وهٰذاالقسم"** مشککا دمشکك بحث ډیر پیچیده دي اهل قلم دي کښې دډیروضاحت نه کار اخستې دي او دوې ډیر څه ویلي دي مګر په طریقه د اجمال سره مونږ ددې ښودل غواړو چه.داشراقینو او مشائینو ترمنځه دي کښې اختلاف دي چه په ماهیاتو او ذاتیاتو کښې تشکیك کیدي شي او که نه؟ یعني دیو ماهیت افراد بغیر د التفات نه عوارضو ته التفات في الشدت والضعف في التقدم والتاخرو في الزیاده والنقصان وفي الاولویة وضدها کیدي شي او که نه،مذهب دمشائینو دادي چه په ماهیاتو کښې تشکیك نشته دي نه په ماهیت جوهریه او نه په ماهیت عرضیه کښې مثلا نفس جسم او نفس سواد کښې تشکیك نشته دي بلکه تشکیك په افرادو کښې دي چه ددې موصوف کیدل بالعرض وي یعني په

اسود کښي تشکيك وي مګر په اسود او جسم کښي تشکيك نشته دي او اشراقين وائي چه نفس جسم او نفس جوهر او نفس ماهيت کښي هم تشکيك شته دروي په نزد په جسم انسان جسم دفيل او دماهي جسم کښي تشکيك شته.

(۵)قوله "لانّهٗ يوقع الناظر" دادمشکك وجه تسميه ده يعني ديته مشکك په دي وجه وائي چه ددي اصل افراد په معني کښي مشترك دي مګر په شدت او ضعف او په زيادت او په نقصان کښي تفاوت دي پس که چري تـه پـه نظر سره ورته اوګوري نو ددي دمتواطي او مشکك کيدو فيصله نشي کيدي او که چري اصل معني ته نظر وکړي نو دتواطي فتوي ورکوي او دشدت او ضعف په لحاظ سره اوګوري نو تشکيك مخي تـه راځي نـو دي وجه نه کتونکي دمتواطي او مشکك کيدو فيصلي کولو تـه حيران پاتي کيږي.

فِي الشَكِّ فِيْ كَوْنِهٖ مُتَوَاطِيًا وَمُشْتَرَكًا. **فصل** : اَلْمُتَكَثِّرُ (۱) الْمَعْنٰى

په وجه دمتواطي او مشترك کيدو سره،فصل : دمتکثر المعني دير اقسام دي

لَهٗ اَقْسَامٌ عَدِيْدَةٌ عَلٰى وَجْهِ الْحَصْرِ اِنَّ اللَّفْظُ الَّذِيْ كَثُرَ مَعْنَاهُ

دحصر وجه داده څکه چه هغه لفظ چه ډيرې معني کاني وي کچري

اِنَّ وُضِعُ ذٰلِكَ اللَّفْظُ لِكُلِّ مَعْنًي اِبْتِدَاءً بِاَوْضَاعٍ مُتَعَدِّدَةٍ عَلٰى حِدَةٍ

جدا جدا ديو څو اوضاعو، دپاره وضع شوي وي نو دهغي نوم

يُسَمّٰي مُشْتَرَكًا(۲) كَالْعَيْنِ وُضِعَ تَارَةً لِلذَّهَبِ وَتَارَةً لِلْبَاصِرَةِ وَتَارَةً

مشترك کيخودلے شوے لکه عين لفظ دي کله دذهب او کله دباصري او کله

لِلرَّكْبَةِ وَاِنْ لَّمْ يُوْضَعْ لِكُلِّ اِبْتِدَاءًبَلْ وُضِعَ اَوَّلًا لِمَعْنًي

دركب دپاره وضع شوي دي او كچري ابتداء وضع شوي نه وي بلكه ابتداءً ديوې معنى

ثُمَّ اُسْتُعْمِلَ فِيْ مَعْنًى ثَانٍ لِاَجْلِ(٣) مُنَاسَبَةٍ

دپاره كينبودي شوي بيا دبلي معنى دپاره استعمال شوي وي دوجې دمناسبت نه د دواړو

بَيْنَهُمَا اِنْ اشْتَهَرَ(٤) فِي الثَّانِيْ وَاِنْ تَرَكَ مَوْضِعُهُ الْاَوَّلِ يُسَمّٰي

تر مينځ كچري دويم كښي مشهور شوي وي او اولني مَوْضُوع له ترك شوي وي

مَنْقُوْلًا وَالْمَنْقُوْلُ بِالنَّظَرِ اِلَي النَّاقِلِ يَنْقَسِمُ اِلٰي ثَلَاثَةِ اَقْسَامٍ

دا په منقوله مسمي دي او منقول يا نظر سره ناقل ته په دري قسم دي

اَحَدُهَا الْمَنْقُوْلُ الْعُرْفِيْ بِاِعْتِبَارِ كَوْنِ(٥) النَّاقِلِ عُرْفًا وَثَانِيْهَا

اول منقول عرفي دي په اعتبار دناقل ته په عرف كښي دويم قسم

الْمَنْقُوْلُ الشَّرْعِيْ بِاِعْتِبَارِ كَوْنِهٖ بَابُ الشَّرْعِ وَثَالِثُهَا

منقول شرعي په اعتبار دناقل شرع ته، دريم قسم منقول اصطلاحي

كَوْنِ الْاِصْطِلَاحِيْ بِاِعْتِبَارِ كَوْنِهٖ عُرْفًا خَاصًا وَطَائِفَةٌ مَخْصُوْصَةٌ

په اعتبار دبودن سره عرف خاص او طائفه مخصوصه

(٦)مِثَالُ الْاَوَّلِ كَلَفْظِ الدَّابَةِ كَانَ فِي الْاَصْلِ مَوْضُوْعًا لِمَا يَدُبُّ

داول قسم مثال لكه لفظ ددابة په اصل كښي دمايدب عَلَ الارض دپاره وضع كړي

عَلَي الْاَرْضِ ثُمَّ نَقَلَهُ الْعَامَّةُ لِلْفَرَسِ اَوْ لِذَاتِ الْقَوَائِمِ الْاَرْبَعِ

شوي دي بيا نقل شوي دي دپاره دفرس او دپاره دذات قوائم اربع (چه څلور پښي

(٧)مِثَالُ الثَّانِيْ كَلَفْظِ الصَّلَاةِ كَانَ فِي الْاَصْلِ بِمَعْنَي الدُّعَاءِ ثُمَّ

لري) ددويم مثال لكه لفظ صلوة چه په اصل كښي ددعا دپاره بيا

نَقَلَهُ الشَّارِعُ إِلَي اَرْكَانٍ مَخْصُوْصَةٍ مِثَالُ الثَّالِثِ كَلَفْظِ الْاِسْمِ كَانَ

شارع ارکان مخصوصه ته نقل کړي دي د دريم مثال لکه لفظ داسم چه

فِي اللُّغَةِ بِمَعْنَي الْعُلُوِ ثُمَّ نَقَلَهُ النُّحَاةُ اِلَي كَلِمَةٍ مُسْتَقِلَّةٍ فِي

لغت کښې علوته بيا نحاتو کلمه مستقله ته نقل کړې دې چه په دلالت کښې غير

الدَّلَالَةِ غَيْرُ مُقْتَرِنَةٍ بِزَمَانٍ مِنَ الْاَزْمِنَةِ الثَّلَاثَةِ وَاِن(٨) لَمْ يَشْتَهِر

مقترن په زمانو ثلثه وي اګر چه دويم کښې زياتې شهرت نه لري

فِي الثَّانِيْ وَلَمْ يَتْرُكِ الْاَوَّلَ بَلْ يُسْتَعْمَلُ فِي الْمَوْضِعِ الْاَوَّلِ مَرَّةً وَفِي

او اولني ترک شوي نه وي بلکه کله په اول مَوْضوع کښې استعمال کړې شي او کله

الثَّانِيْ اُخْرٰي يُسَمّٰي بِالنِّسْبَةِ اِلَي الْاَوَّلِ حَقِيْقِيَّةً(٩)وبِالنِّسْبَةِ اَلَي الثَّانِيْ

په دويم مَوْضُوع کښې په اول کښې په نسبت سره حقيقت او په دويم کښې.

**(۱)قوله "المتكثر المعنى"** په اول فصل کښې دمفرد قسمونه بيان شوي دي چه دهغې معني واحد او يوه ده پدې فصل کښې دمفرد تقسيم کوي چه دهغې معني کانې ډيرې وي او دکثيراو ډير دا مطلب دي چه په کثير کښې استعمال شوي وي ګر چه دټولو دپاره مَوْضُوع نه وي نو ددې مطلب نه مجاز متکثر الْمَعْنٰى خارج نشوه.

**(٢)قوله مشتركا:** دېته يې ددې وجې نه مشترک وائي ځکه چه پدې کښې اشتراک فِي الْمَعَانِيْ وي او بعضې غلط فهمې سره وائي چه مشترک في الافراد دوجه نه دېته مشترک وائي دا ددوي بنکاره خطا ده ځکه چه دلته دالفاظو بحث دي لِهٰذَا بيان داشتراک لفظي پکار دي نه مشترک معنوي، والمشترك بَيْنَ الافراد في المشترك المعنوي لا اللَّفْظِي.

**(٣)قوله "لاجل مناسبة"** دا يو احترازي قيددي دي نه مُرتجل خارجول

پکاردي چه پدي کښې داول معني او دويم معني اګر چه مناسبت نه لري مګريه دويمه معني کښې استعمال کړي شوي دي لکه څنګه چه جعفر اول دوړوکي نهر دپاره وضع شوي وو وروسته بغير دکوم مناسبت نه دانسان دپاره علم کيښودلي شو اوددي دمرتجل کيدو وجه داده چه ارتجال بغير دسوچ اوفکر کولو نه خطرته واځي نوچونکه دلته بغير دکوم مناسبت نه بغير دسوچ اوفکر نه د دويمي معني په طرف انتقال کيږي ددي وجه نه ديته مرتجل ويل کيږي.

فائده: مرتجل په مشترک کښې داخل دي ياپه منقول کښې پدي کښې اختلاف دے دجمهورو په نزد مرتجل او منقول په خپو کښې قسمونه دي.

(٤)قوله "ان اشتهي" يعني اول مفرد دخپلي مَوْضُوْع ته پريږدي که چري دا دومره په دويمه معني کښې وکارول شي چه بغير دسوچ اوفکر نه په دويمه معني کښې ذهن ته راشي نو ديته منقول واېي چه داول معني په وجه چه دويمي معني ته نقل کړي شوي دي.

(٥)قوله "كون الناقل عرفا عاما" که چري ناقل عرف عام وي نو ديته منقول عرفي ويل کيږي او څنو اکابرو اهل لغت په عرف عام کښې ګڼړلي دي داخيال ددوي صحيح نه دي.

(٦)قوله "مثال الاول" دا مثال دمنقول عرفي دي لکه لفظ دابة په لغت کښې هغه څناور ته ويل کيږي کوم چه په زمکه باندي ځي بيا خلقو اسونو او څلورو پښو والا څناورو ته نقل کړي دي.

(٧)قوله "المثال ثاني كلفظ الصلوة" دا مثال دمنقول شرعي دي لکه صلاة چه په لغت کښې ددي معني دعا ده بيا شارع دغه لفظ ارکان مخصوصه يعني قيام، قعود او سجده رکوع يعني مونځ ته نقل کړي دي.

(٨)**قوله "مثال الثالث كَلَفظِ الاسم"** دا مثال دمنقول اصطلاحي دي لكه ددي معني په لغت كنبي اوچتوالي ته ويل كيږي بيا نحويا نو يوي مستقلي كلمي ته دغه اسم نقل كړي دي په كوم كنبي چه يو د دريو زمانو نه يوه زمانه هم نه موندل كيږي او دغه اسم په خپلو دوه ملكرو يعني په حرف او فعل باندي فوقيت او اوچتوالي لري ددي دپاره اسم محكوم عَلَيْهِ او محكوم به وي او فعل محكوم به وي نه محكوم عَلَيْهِ او حرف نه محكوم عَلَيْهِ وي او نه محكوم به.

(٩)**قوله حقيقته** ، دا لفظ دحق نه مشتق دي چه ددي معني ثابت او په دي كنبي تا نقل شوي ده يعني حقيقت چه كله په لغوي معني دعلم طرف ته نقل كړي شي نو ددي په اخر كنبي تاد اسميت ولړروي او داشتاقي معني لحاظ پدي كنبي نه دي شوي لكه دا چه دحق نه مشتق دي چه ددي معني ده ثبوت نو دي وجه نه مفرد متكثر الْمَعْنٰى ته پدي وجه حقيقت نوم باندي مسمي شوي ده څكه چه پدي كنبي لفظ دمَوْضُوْع دپاره ثابت دي.

مَجَازًا (١)كَالْاَسَدِ بِالنِّسْبَةِ اِلَي الْحَيَوَانِ الْمُفْتَرِسِ وَالرَّجُلِ الشُّجَاعِ

مجازاً لكه سر په نسبت سره حيوان مفترس او رجل شجاع ته

بِالنِّسْبَةِ اِلَي الْاَوَّلِ حَقِيْقِيَّةً وَبِالنِّسْبَةِ اِلَي الثَّانِيْ مَجَازًا. **فصل** :

په نسبت سره اولني ته حقيقت او دويم ته مجاز. فصل:

اِنْ (٢)كَانَ اللَّفْظُ مُتَعَدِّدًا والْمَعْنٰى وَاحِدًا يُسَمّٰى (٣) مُرَادِفًا

كه چري لفظ متعدد وي او معني واحد وي دا په مرادف مسمي شوي دي

كَالْاَسَدِ وَاللَّيْثِ وَالْغَيْمِ وَالْغَيْثِ . **فصل** : اَلْمُرَكَّب قِسْمَانِ

لكه اسد او ليث او غيم او غيث. فصل مركب په دوه قسمه دي

اَحَدُهَاالْمُرَكَّب التَّامُ وَهُوَ مَا يَصِحُّ السُّكُوْتُ عَلَيْهِ

يو نه مركب تام اوبل ته مركب ناقص مركب تام هغه دي چه سكوت په هغي صحيح وي

كَزَيْدٌ قَائِمٌ وَثَانِيهِمَا اَلْمُرَكَّب النَّاقِصُ وَهُوَ مالَيْسَ كذٰلِكَ .**فصل**

لكه زَيْدٌ قَائِمٌ د دويم قسم مثال چه دغه شان نه وي. فصل

: اَلْمُرَكَّب التَّامُ ضَرْبَانِ يُقَالُ.لِاَحِدِهَا الْخَبَرُ وَالْقَضْيَةُ وَهُوَ مَا

مركب تام په دوه قسم دي يو ته خبر اوقضيه وائي او دا هغه مركب مركب دي چه

قَصَدَ بِهِ الْحِكَايَةُ وَيَحْتَمِلُ(٤) الصِّدقَ وَالْكِذْبَ وَيُقَالُ لِقَائِلِهِ

پدي سره قصد حكايت وي او احتمال دصدق او كذب دواړو ولري او قائل ته

اِنَّهُ صَادِقٌ اَوْ كَاذِبٌ نَحْوَ السَّمَاءُ فَوْقَنَا وَالْعَالَمُ حَادِثٌ فَاِنْ قِيْلَ

صادق او يا كاذب ويل كيږي كه السماء فوقناوالعالم حَادِثٌ اوكه اعتراض وكړي شي

قَوْلُنَا(٥) لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ قَضْيَةٌ وَخَبَرٌ مَعَ اِنَّهُ لَا يَحْتَمِلُ الْكِذْبَ

كه دا قول زمونږ لااله الاالله قضيه ده او خبرډي ددي باوجود احتمال دكذب نه لري

قُلْتُ مُجَرَّدُ اللَّفْظِ يَحْتَمِلُهُ وانْ كَانَ نَظَرَ اِلَي خُصُوصِيَّةِ

جواب دا وركوو چه صرف لفظ احتمال لري اكر چه په لحاظ خصوصيت ددوه

الْحَاشِيَتَيْنِ غَيْرَمُحْتَمَلٍ لِلْكِذْبِ وَيُقَالُ لِثَانِي الْقِسْمَيْنِ الْاِنْشَاءُ(٦)

طوفونو ته نظر كولو سره احتمال دكذب نه لري او دي دوه قسمونو كښي دويم ته انشاء

**و الْإِنْشَاءُ اَقْسَامٌ (۷)اَمْرٌ (۸) وَنَهْيٌ وَتَمَنٍّ وَتَرَجٍّ وَاسْتِفْهَامٌ وَنِدَاءٌ .**

ويل كيږي او انشاء ډير اقسام لري امر نهي، ترجي، تمني، استفهام او ندا ده.

**(۱)قوله "مجازا"** دا لفظ دجاز يجوز نه ماخوذ دي ددي معنى ده تګکښي زباتيدل چونکه په مجاز کښي مَوْضُوْع باقي نه وي پاتي شوي او لفظ د دويمي معني مَوْضُوْع ته ورتير شوي وي نو ددي وجه نه ديته مجاز ويل كيږي.

**فائده:** دمجاز دپاره دا ضروري ده چه په اول معنى کښي او دويمه معنى کښي څه ناڅه علاقه ضروري وي ددي دپاره چه مجاز او غلط کښي فرق وکړي شي چه دا علاقي دي دکومو دوجي نه چه ديته دمجاز ويل صحيح دي دا يو مفصل او اوږد بحث دي چه داصولو په کتابونو کښي مَوْجُوْدٌ دي څنې حضراتو پنځه ويشت وئيلي دي او صاحب دتوضيح نهه ياد کړي او علامه ابن حاجب پنځه زکرکړي دي.

**(۲)قوله "إِنْ كَانَ الفظ"** په اولني فصل کښي مؤلف دلفظ واحد دمتعدو معناګانو تقسيم بيان کړي دي او اوس يې پدي فصل کښي دلفظ دوه اقسام بيان کړي دي چه لفظ دوه وي او معنى يوه وي.

**(۳)قوله مُرَادِفًا،** ددي حاصل دادي چه مرادف دمشترك مقَابِل دي چه په مشترك لفظ يو او معني متعددوي او په مراد کښي معني يوه اولفظ متعدد وي لکه داسد اوليث دواړو معني ګان دزمري دي او لکه دغيم او دغيث د دواړو معني ګاني باران دي.

**فائدنبيه:** يو څناور چه دوه کسان سواره وي هغوي دواړو ته ردفين ويل كيږي نودغه شان دلته هم په يوه معني دوه الفاظ دي سواره دي ددي وجې

نه هریو لفظ ته مرادف ویل کیږي.

**فائده:** داضروري نه ده چه همدغه دوه الفاظ دي مرادف وي بلکه د دوه نه زیات هم مرادف کیدي شي لکه غیم، غیث، مطر د دري واړو معنی ګاني باران دي اوبالکه اسد، لیث، غضنفر ضرغام دځلورو واړو معني ده زمري

(٤)**قوله "یحتمل الصدق والکذب"** دلته یو سوال پیدا کیږي چه مرکب تام که چرې صادق وي نو کاذب به نه وي او که کاذب وي نو صادق به نه وي لهٰذا دا ویل صحیح نه شول چه مرکب تام هغه دي په کوم کښي چه دصدق اوکذب احتمال وي.

جواب دادي چه ددینه زمونږ مطلب دادي چه ددي نفس مفهوم احتمال دصدق او کذب لري اګر چه دوقوع یا عدم وقوع دجانبه یو طرف (صدق یاکذب) متعین کړي شي او مؤلف دفان قیل نه ددي سوال جواب واضح وئیلي دي احتمال دصدق نه مراد مطابقت دواقع وي او مراد دکذب نه عدم مطابقت دي د واقع سره.

(٥)قوله "لااله الاالله پدي باندي دا اعتراض شوي دي چه دا مقدمه لااله الاالله دنحویانو په نزد خبر دي او دمنطقیانو په نزد قضیه ده او پدي کښي احتمال دصدق او کذب بالکل نشته دي نو پدي دقضیه اوخبر تعریف صادق رانغلو او تعریف جامع نشو نو ددي جواب دادي چه صرف معني دلفظ احتمال دکذب لري که چرې دمَوْضُوْع اومحمول خصوصیت طرف ته نظر وکړي شي نو بیا ددي احتمال دکذب نلري.

(٦)**قوله الانشاء،** دادمرکب تام دویم قسم دي کوم چه دخبر او قضیه مقَابِلِ کښي دي یعني انشاء هغه ده دکوم چه کوم محکي عنه نه وي او دحکایت قصد هم نه وي اویدي کښي دصدق او کذب احتمال هم نه وي

او نه ددي قائل ته صادق او كاذب ويل كيدي شي.

(۷) **قوله** "والانشاء اقسام" يعني دانشاء ډير اقسام دي مؤلف صرف دپينځو قسمونو ذكر كړےدے مثلا عقود او تعجب او نور ږي پريښي دي.

(۸) **قوله** "امر" امر طلب كول ديو كار علي سبيل الاستعلاء تـه ويـلي شي، دطلب فعل دپاره مَوْضُوْع ده او نهي عدم فعل علي سـبيل الاسـتعلاء دپـاره مَوْضُوْع دي او علي سبيل الحب ديوشي طلـب تـه عـلي سـبيل محبت ويـل كيږي اگر چه هغه فعل ممكن هم نه وي او دترجي هم همدغه مفهـوم دي مگر پدي كښي دا خبره ضروري ده چه دكوم طلب حصول وي هغه ممكن وي او استفهام هغه دي چه هغي كښي دلالت ديوشي په معلومولـو بانـدي وي او ندا هغه دي چه په هغي كښي په يو شي باندي دلالت كول وي.

## فصل

اَلْمُرَكَّبُ (۱) النَّاقِصُ عَلٰى اَنْحَاءٍ مِنْهَا اَلْمُرَكَّب الْاِضَافِيْ كَغُلَامُ زَيْدٍ

مركب ناقص په څو قسمونو دي اول قسم لكه مركب اضافي لكه غلام زيد

وَمِنْهَااَلْمُرَكَّب التَّوْصِيْفِيْ كَالرَّجُلِ الْعَالِمِ وَمِنْهَااَلْمُرَكَّب الْغَيْرُ

دويم مركب توصيفي لكه الرجل العالم دريم ته مركب غير تقيدي وايي

التَّقْيِيْدِيْ كَفِيْ(۲) الدَّارِ وَهٰهُنَا قَدْ تَمَّ بَحْثُ الْاَلْفَاظِ وَالْاٰن نُرْشِدُكَ

لكه في الدار دلته دالفاظو بحث ختم شو او اوس د معناگانو په طرف لارښودنه كوو.

اِلٰي بَحْثُ الْمَعَانِيْ. **فصل**: اَلْمَفْهُوْمِ اَيْ مَا (۳)حَصَلَ فِيْ الذِّهْنِ

فصل: مفهوم يعني هغه چه په ذهن كښي حاصل شي

قِسْمَانِ اَحَدُهَاجُزئِيٌّ وَالثَّانِي كُلِّيٌّ(٤) فَهُوَ مَا لَا يَمْتَنِعُ نَفْس تَصَوُّرِهِ

په دوه قسم دي اول قسم جزئي دويم قسم كلي دي جزئي هغه دي چه دهغي تصور په

عَنْ وُقُوعِ الشِّرْكَةِ فِيهِ وَعَنْ صِدْقِهِ عَلَى كَثِيرِيْنَ كَالْاِنْسَانِ

ديرو افرادو صادق كولو نه منع كوي لكه انسان او زيد اوعمرو

وَالْفَرَسِ وَقَدْ يفسر الْكُلِّيُّ وَ الْجُزْئِيُّ بِتَفْسِيرَيْنِ اُخْرَيْنِ اَمَّا الْكُلِّيُّ

وهذا الفرس وهذا الجدار مطابق داخري دوه تفسيرونو، او كلي هغه دي چه

فَهُوَمَا جَوَّزَ الْعَقْلُ تَكَثُّرَهُ مِنْ حَيْثُ تَصَوُّرِهِ

نفس تصور د وقوع شركت په ديرو معني كانو كنبي نه منع كوي

واما الْجُزْئِيُّ فَهُوَمَا لايَكُونُ كَذٰلِكَ.

او جزئي داسي ندي هغه په نورو تعبرونو سره مفسر كيږي

**فصل**: الكلي(٥) اقسام اَحَدُهَا مَا يَمْتَنِعُ وُجُودُ اَفْرَادِهِ فِي الْخَارِجِ

فصل: كلي په څو قسمونو سره دي اولني هغه قسم دي چه وجود دافرادو په خارج كنبي

فِي الْخَارِجِ (٦) وَللَّاممْكِنْ وَللَّاموْجُوْدٌ وثَانِيهَا مَا يُمْكِنُ اَفْرَادُهُ

منع كوي لكه لاشي او لاممكن اولاموْجُوْدٌ او دويم قسم هغه دي چه افراد يې ممكن

وَلَمْ تُوجَدْ كَالْعُنْقَاءِ وَجَبَلٌ مِنَ الْيَاقُوتِ وثَالِثُهَا مَا اَمْكَنَتْ اَفْرَادُهُ

وي موندلي كيږي نه لكه عنقاء او جبل من الياقوت دريم قسم هغه دي چه افراد ورته

اِلَّا فَرْدٌ وَاحِدٌ كَالشَّمْسِ(٧) وَالْوَاجِبِ (٨)تَعَالٰي وَرَابِعُهَا

ممكن وي او موْجُوْدٌ نه وي بغير ديو فرد نه لكه الشَّمْسُ والواجب تعالي او څلورم قسم

مَاوُجِدَتْ لَهُ اَفْرَادٌ كَثِيْرَةٌ اِمَّا مُتَنَاهِيَةٌ كَالْكَوَاكِبِ السَّيَّارَةِ فَاِنَّهَا

هغه کلي دے چه افراد ورلره ډیرموْجُوْدْ وي یامتناهي لکه کواکب سیاره ځکه چه دا

سَبْعٌ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ وَالْمِرِيْخُ وَالزَّهْرَةُ وَالزُّحَلُ وَعَطَارِدُ

اووه دي شمس، قمر، مریخ، ذهره ، زحل، عطارد،

وَالْمُشْتَرِيْ وَغَيْرَ مُتَنَاهِيَةٌ كَاَفْرَادِ الْاِنْسَانِ وَالْفَرَسِ وَالْغَنَمِ وَالْبَقَرِ.

مشتري، او غیر متناهي لکه افراد دانسان او د فرس او غنم او بقر.

(۱)قوله "اَلْمُرَكَّبُ النَاقص" ناقص مرکب هغه مرکب دي په کوم کښي چه اسناد نه وي یعني دهغه اجزاء مسند او مسند الیه نه وي او ددي دوه صورتونه دي، یو چه دواړه اجزاء تمام الدلالت او داسناد لائق وي مګر چونکه دويم جزء داول جزء قید جوړ کړي شي ددي وجه نه اسناد نشي کیدي مثلا غلام، زید مضاف او مضاف الیه دي او زیدٌ الکریم دا موصوف صفت دي دیته مرکب تقیدي ویل کیږي، دویم صورت دادي چه دیو جزء دلالت غیرتام وي او دویم جزء د اول جزء کیدو نه وي لکه في الدار اویا علي السطح چه پدي دواړو مثالونو کښي حرف جرموْجُوْدْ دي کوم چه داسناقَابِل ندي او دویم جزء هم ددي دپاره قید ندي دیته مرکب غیر تقیدي ویل کیږي.

(۲)قوله "کفي الدار" مصنف دادمرکب تقیدي مثال ورکړي دي مګر ځنګه چه تاسو ته معلومه ده چه دا دغیر تقیدي مثال دي او دلته دغیر لفظ دکاتب نه په سهوه پاتي شوي دي.

(۳)قوله "حصل في الذّهن" یعني مفهوم هغه ته ویل کیږي کوم چه په ذهن کښي حاصل شوي وي یعني ددي شان دادي چه په ذهن کښي في الحال

حاصل كړي شي او كه بالفعل حاصل وي او كه نه وي.

**فائده**: دكليت او جزيت بالذات معني صفات دي ليكن تبعا تسميه الدَّالُ باسم مدلول، چه الفاظ په دكليت او جزئيت متصف كړي لكه افراد اوتركيب بالذات دالفاظو صفات دي مگر تبعا تسمية المدلول باسم الدَّالُ معني گانو سره موصوف كړي دي.

**(٤)قوله "اما الجزئي"** دكلام حاصل دادي چه ديوشي نفس تصور كه چري په ډيرو باندي صادق راتللو نه ممتنع وي نو هغه جزئي دي او كه ممتنع نه وي نو هغه كلي دي دتمنع كيدو اونه كيدو دا مطلب دي كه چري عقل كَثِيْرِيْنَ باندي صادق راتللو تصور وكړي نودغه علي الكَثِيْرِيْنَ تصور نه جائز اوياغير جائز كيږي كه چري شق ثاني وي نو هغه جزئي دے او كه داسي نه وو هغه كلي دي ددي بيان نه درته دا معلومه شوه چه اگر چه دكوم شي مفهوم صدق علي الكَثِيْرِيْنَ په خارج كښي ونكړي شي مگر عقل هغه جائز وګرځوي نو هغه هم كلي دي بلكه كه چري په خارج كښي په يو فرد باندي هم دصادق دراتللو ممتنع وي مگر عقل ددي صدق علي الكَثِيْرِيْنَ جائز ګڼري نو هغه هم كلي دي اهل منطق وائي چه دواجب تعالي مفهوم دمفهوميت په حيثيت سره كلي دي اگرچه صدق ديونه په زياتو باندي نشي كيدي مگر عقل ددي صدق جائز كړي دي همدغه شان مفهوم دشريك هم يو كلي دي مگر په خارج كښي ددي يو فرد هم مَوْجُوْدٌ نشته دي ځكه چه شريك الباري تعالي ممتنع دي ليكن عقل ددي صدق علي الكَثِيْرِيْنَ جائز ګرځولي دي.

**(٥) قوله الكلي اقسام**: يعني دكلي څو قسمونه دي محقق طوسي په شرح اشارات كښي په شپږو قسمونو كښي منحصر كړي دي دانحصار وجه داده

چه دکلي افراد ممکن کیدي شي اوبانشلي کیدي په اول شق کښي پنځه صورتونه دي، یو چه یو فرد هم مَوْجُوْدٌ نه وي لکه عنقا، دویم یوفرد مَوْجُوْدٌ وي او ددویم فرد وجود ممتنع وي لکه واجب تعالي، دریم افراد کثیره متناهیه مَوْجُوْدٌ وي لکه انسان حیوان وغیره څلورم افراد کثیر متناهیه مَوْجُوْدٌ وي لکه اوه ستوري تلونکي، پینځم همدغه یو فرد هم مَوْجُوْدٌ وي او ددویم فرد وجود ممتنع وي لکه دنمر شق ثاني ددي یو صورت دي، شپږم چه ددي افراد بالکل مَوْجُوْدٌ نه وي لکه شریك دباري تعالي.

(٦)قوله "فِي الْخَارِجِ وللامکن، الخ ددي کلیاتو مطلب دادي چه ددي وجود نه په خارج اونه په ذهن کښي مَوْجُوْدٌ وي څکه چه که چري په خارج یاپه ذهن کښي څه شي فرض کړي نو هغه شي لاشي اولاممکن اولامَوْجُوْدٌ نه وي بلکه هغه شي فِي الْخَارِجِ اوفي الذهن وي پدي باندي اللاممکن واللامَوْجُوْدٌ قیاس کړه.

(٧) قوله کالشمس: داد اول مثال دي دیوهرد موجودیت نه غیر متناهیه افراد کثیره پیدا کیدل ممکن دي مګر پیدا کیږي نه.

(٨) قوله والواجب تعالي، دا ددویم مثال دي چه دفرد نه غیر دغیر وجود ممکن ندي بلکه ممتنع دي اودواجب نه مراد مفهوم دي نه ذات مقدمه چه هغه دخپل ذات په حد کښي نه کلي وي اونه جزئي.

(٩)قوله والمشتري، یوشاعر په شعر کښي داوستورو بیان کړیدي.

هفت کوکب که هست عالم را    گاه ز ایشان نظام وگاه خلل.

قمرست وعطارد وزهره    شمس ومریخ ومشتري

ترجمه: اوه ستوري دي عالم ته کله په نظم او کله پکښي نقصان.

یوسپوږمي.عطارد اوزهره دي نمر، مریخ، مشتري اوزحل دي.

وَقَدْ اُوْرِدَ(۱) عَلٰى تَعْرِيْفِ الْكُلِّيِّ وَالْجُزْئِيِّ، سَوَالٌ تَقْرِيْرُهُ : اَنَّ

او دکلي اوجزئ په تعریف یو سوال وارد شوي دي او دهغي تقرير دادي چه

الصُّوْرَةُ الْحَاصِلَةَ مِنَ الْبَيْضَةِ الْمُعَيَّنَةِ وَالشَّبْحِ الْمَرْئِيِّ مِنْ بَعِيْدٍ

هغه صورت کوم چه دبیض معینه نه حاصل شوي دي يا هغه جسم کوم چه دلري نه په

وَمَحْسُوْسُ الطِّفْلِ فِيْ مَبْدَءِ الْوِلَادَةِ كُلُّهَا جُزْئِيَّاتٌ

نظر راځي او ماشوم کوم چه دولادت وخت کنبي محسوبيږي دا ټول دکل جزئيات دي

مَعَ اَنَّهُ يُصَدَّقُ عَلَيْهَا تَعْرِيْفُ الْكُلِّيِّ لِاَنَّ فِيْ هٰذِهِ الصُّوْرَةُ فَرْضٌ

ددي باوجود ددي پدي دکلي تعریف صادق کیږي خکه په دي ټولو صورتونو کښي

صِدْقِهَا عَلٰى كَثِيْرِيْنَ غَيْرُ مُمْتَنِعٍ وَالْجَوَابُ اَنَّ الْمُرَادَ

په ټولو باندي صادق کیدلغَیْرُ مُمْتَنِعٍ نه دي جواب دادي چه د کلي په تعریف کښي مراد

بِصِدْقِ الْمَفْهُوْمِ فِيْ تَعْرِيْفِ الْكُلِّيِّ هُوَ الصِّدْقُ عَلٰى وَجْهِ الْاِجْتِمَاعِ

د صدق دمفهوم نه په تعریف دکلي کښي هغه صدق علي وجه الْاِجْتِمَاعِ دي او دغه

وَهٰذِهِ الصُّوْرَةُ اَعْنِيْ صُوْرَةُ الْبَيْضَةِ الْمُعَيَّنَةِ وَغَيْرِهَا اِنَّمَا يُصَدَّقُ

او دا صورة يعني صورت دبيضه معينه وغيره يقينا ، دا. صادقيږي

عَلٰى كَثِيْرِيْنَ بَدَلًا لَامِعًا فَاِنَّ الْوَحْدَةَ مَاخُوْذَةٌ فِيْ هٰذِهِ الصُّوْرَةِ

په کثیرینو علي وجه البدل خکه چه وحدت ماخوذ دي پدي صورت کښي

ضَرُوْرَةُ اِنَّهَا مَاخُوْذَةٌ من مادة مُعَيَّنَةِ جُزْئِيَّةٍ وَلَوْلَا فِيْهَا اِعْتِبَارُ

ضرورة خکه چه دا ماخوذ دي د مادي معيني جزئي نه، او کچري پدي کښي توحد لره

التَّوْحِدِ لَكَانَتْ كُلِّيَّةً مِنْ غَيْرِ لَزُوْمِ اِشْكَالِ هٰذَا. **فصل في**(۲)

اعتبار نوي نو دا به ضرور کليه وه ، علاوه د لزوم ددي اشکال نه ، فصل دي په

**النسبة بَيْنَ الكليين**:اِعْلَمْ اَنَّ النِّسْبَةَ بَيْنَ الْكُلِّيَيْنِ تُتَصَوَّرُ عَلٰى

بيان دنسبت ددوه کليينومينځ کښي په دي پوهه شه چه نسبت د دوه کليينو ترمينځه په

اَنْحَاءٍ اَرْبَعَةٍ اِنَّكَ اِذَا اَخَذْتَ كُلِّيَيْنِ فَاِمَّا اَن يُصَدَّقَ كُلٌّ مِنْهُمَا عَلٰى

څلورم قسمه متصور کيږي خکه چه تا دوه کلي واخستل نو دا به ياهر يو

په خپلو افرادو صادق کيږي په کوم چه دويم هم صادق کيږي پس دغه دواړه مساوي

مَا صَدَقَ عَلَيْهِ الْاٰخَرُ فَهُمَا مُتَسَاوِيَانِ

كَالْاِنْسَانِ وَالنَّاطِقِ لِاَنَّ كُلَّ اِنْسَانٍ نَاطِقٌ و كُلَّ نَاطِقٍ اِنْسَانٌ

دي لکه انسان او ناطق خکه هر انسان ناطق دي او هر ناطق انسان دي

اَوْ يُصَدَّقُ اَحَدُهَا عَلٰى مَا يُصَدِّقُ عَلَيْهِ الْاٰخَرُ وَلَا يُصَدَّقُ الْاٰخَرُ

او يا به يو ورنه په هغه بل صادق کيږي په کوم چه هغه بل صادق کيږي او هغه بل به

عَلٰى جَمِيْعِ اَفْرَادِ اَحَدُهَا فَبَيْنَهُمَا عُمُوْمٌ وَخُصُوْصٌ مُطْلَقًا كَالْحَيْوَانِ

نه صادق کيږي نو ددوي ترمينځه عموم او خصوص مطلق دي لکه حيوان

وَالْاِنْسَانِ فَيُصَدَّقُ الْحَيْوَانُ عَلٰى كُلِّ مَا يُصَدَّقُ عَلَيْهِ الْاِنْسَانُ

او انسان خکه حيوان په هر انسان صادق کيږي او انسان

وَلَا يُصَدَّقُ الْاِنْسَانُ عَلٰى كُلِّ مَا يُصَدَّقُ عَلَيْهِ الْحَيْوَانُ بَلْ عَلٰى

په هر حيوان نه صادق کيږي بلکه په بعضو صادق کيږي او يابه نه صادق کيږي

بَعْضِهٖ وَلَا يُصَدَّقُ شَيْءٌ مِنْهُمَا عَلٰى شَيْءٍ مِمَّا يُصَدَّقُ عَلَيْهِ الْاٰخَرُ.

يو پرهغه بل چه کوم صادق کيږي او دا دوارو.

(۱)قوله "وَقَدْ اورد مؤلف ددي ځاي نه ديو سوال جواب ورکوي دسوال تقدير دادي چه دکلي او جزئي تعريف حاصل دادے چه کوم په کثيرينو باندي صادق راشي نو هغه کلي دي او کوم چه په كَثِيْرِيْنَ صادق رانشي نو هغه جزئي دي نو اوس مونږ ستاسو په مخکښي يومثال پيش کوو چه دکوم نه دا تعريف صحيح نشي مثلا څوك شخص يوه معينه هګي اوګوري بياهغه هګي دهغه ځايه لري کړي او په هغه ځاي باندي بله هګي کيږدي اوبياهغه هم لري کړي او په هغه ځاي بله هګئ کيږدي اوهغه ليدونکي ته دهغه هګئ بدلولو علم نه وي نو ددي صورت دخيال صدق كَثِيْرِيْنَ باندي راځي بياديته جزئي هم ويل کيږي همدغه شان دلري نه کوم صورت او شکل په نظر راشي او دا معلومات ورته نه وي چه دا څوك دي ترڅو چه معلوم شوي نه وي په هغي دزيد صدق هم راځي اودعمرو او دبکر هم او په خالد هم لِهٰذَا ددي کلي پکار دي حالانکه ديته هم جزئي وائي همدارنګه چه کله چه نوي پيداشوي ماشوم پيژندل شروع کړي نه وي هر څوك چه ددي ماشوم مخکي راشي هغه مور او پلار ګڼري اګر چه ډير اشخاص هم راشي لِهٰذَا دي صورت خيال ته هم کلي ويل پکار وو حالانکه دي ته هم جزئي وائي ددي جواب دادي چه دصادق علي الكَثِيْرِيْنَ مطلب دادي چه په ټولو افرادو دهغه واحد په همدغه يو وخت کښي صادق راتلي شي نه به وجه بدليت اودغه ته چه کوم صورتونه پيش کړي دي پدي کښي صدق علي الكَثِيْرِيْنَ په يو باندي حجة مجتمعا نه کړي بلکه يوبل پسي وي.

**(۲) قوله في النسبة بَيْنَ الكليين:** کله چه مؤلف دکلي او دهغي دېوتقسيم نه فارغ شو نو اوس دنسبت د دوه کليو وضاحت او ددي تقسيم شروع کول غواړي ددي فعل حاصل دادي چه که چرې دوه کليان وي په څلورو نسبتوکښي يو نسبت به ضروري که چرې دواړه په خپل مينځ کښي ممتدفي الصدق وو چه چيرته يو وي نوبل به هم وي نو ديته نسبت تساوي ويل کيږي لکه انسان اوناطق چه دواړه متحدفي الصدق دي چه چيرته انسان وي هلته ضرور ناطق وي وكذٰلِكَ عكسه.

دنسبت تساوي نه دوه قضيه کلي په لاس راځي مثلا دمثال مذکور نه که چرې قضي جوړي کړي شي نو دابه وي، يو کل انسان ناطق، دويم کل ناطق انسان.

**فائده:** چه دکومو دوه کليو ترمنځه نسبت تساوي وي نو دهغوي قضيو ترمينځ هم نسبت تساوي وي لکه انسان او ناطق قضيه اوکلي دي نو دا قضي په لاس راغلي، يو کل لاانسان لاناطق، دويم کل لاناطق لاانسان.

**فائده:** په نسبت تساوي کښي دوه هغه اجتماع کيدل ضروري دي لکه څنګه چه دمثال نه ظاهر شو او که دوه کلي خپل مينځ کښي متحد في الصدق نه وي بلکه کله چه په يو ځاي کښي جمع او کله چه داسي وکړي يو کلي صادق شوي وي هلته دويم نه وي صادق شوي نو ددواړو کليو په مينځ کښي عموم او خصوص مطلق نسبت وي کوم چه يوه ماده اجتماعي اويوه ماده افتراقي غواړي دکوم نه چه دوه قضي په لاس راځي يوه موجبه کليه او بله سالبه جزئيه لکه انسان اوحيوان چه هر چرته چه انسان وي هلته به حيوان هم وي اوچرته چه حيوان نوي هلته به يو انسان هم نه وي نو کل انسان حيوان وبعض الْحَيْوَان لَيْسَ بانسان.

**فائده:** دکومو دوه کليو ترمينځ چه دعموم او خصوص مطلق نسبت وي دهغوي نقيضونوهم همدغه نسبت وي او که چري په دوه کليو کښي دهر يو کلي اجزاء اوافراد دبل کلي په بعضو افرادو مادي دافتراق پکار دي چه دهغي حاصل اوه سالبي جزئي اويوه موجبه جزئيه وي لکه حيوان او ابيض چه ددي نه يوه مادي يوه قضيه راوخي، يوه بعضي الحَيْوَان لَيْسَ بابيض کالفيل، دويم بعض الابيض لَيْسَ بحيوان کالثلج، دريم بعض الحَيْوَان بيض کالبط.

**فائده:** دکومو دوه کليو ترمينځ چه نسبت عموم اوخصوص مِنْ وَجْهٍ وي پدي نقيضيو کښي نسبت تبائن جزئي وي او که چري په دوه کليو کښي ديو کلي فرد او دويم کوم کلي په فرد صادق رانشي نو هغه نسبت تباين کلي دي لکه انسان اوفرس د نسبت دوه مادي افتراقي غواړي دکومي حاصل چه دوه سالبو دوه کليو په مينځ کښي چه نسبت تباين کلي وي د دوي په نقيضونو کښي نسبت تباين جزئي وي.

**فائده:** ضروريه مؤلفو نسبت د دوه کليو ترمينځ بيان کړي دي مګر په نسبت دالجزئين بيان يي ندي کړي دي دپاره چه دافن منطق کښي دجزئي بالقصد بحث ندي کړي ځکه چه هغه نه کاسب وو او نه مکتسب او همدارنګه مؤلف دنسبت بَيْنَ المَفْهُوْمِ طرف ته توجه نده کړي ځکه کچري دوه مفهوم واحستل شي نو دواړه به کلي وي يابه دواړه جزئي وي. اويا به يو کلي وي او يو به جزئي وي پدي دري صورتونو کښي دځلورو نسبتونه صرف پدي صورت کښي متحقق کيدي شي چه دواړه کلي وي دي وجه نه مؤلف يو شق بيان کړي دي والله اعلم.

فَهُمَا مُتَبَايِنَانِ كَالْإِنْسَانِ وَالْفَرَسِ اَوْ يُصَدَّقُ بَعْضُ كُلِّ وَاحِدٍ

متباين دي لکه انسان او فرس او يا به بعضي په هغه بل کوم چه هغه صادق کيږي

مِنْهُمَاعَلٰى بَعْضِ مَا صَدَقَ عَلَيْهِ الْاٰخَرُ فَبَيْنَهُمَاعُمُوْمٌ وَخُصُوْصٌ

دابه هم صادق کيږي د دوي تر مينځه نسبت دعُمُوْمْ وَخُصُوْصْ مِنْ وَجْهٍ دي

مِنْ وَجْهٍ كَالْاَبْيَضِ وَالْحَيْوَان فَفِي الْبَطِّ يُصَدَّقُ كُلٌّ مِنْهُمَا وَفِي

-لکه ابيض او حيوان دي په بطه کښي دا ټول صادق کيږي او په

الْفِيْلِ يُصَدَّقُ الْحَيْوَان فَقَطْ وَفِي الثَّلْجِ وَالْعَاجِ يُصَدَّقُ الْاَبْيَضُ

فيل کښي صرف حيوان صادق کيږي او په ثلج او عاج (واوره، دفيل غاښ) صرف ابيض

فَقَطْ فَهٰذِهٖ اربع نِسَبِ التَّسَاوِيْ وَالتَّبَايُنِ وَالْعُمُوْمُ وَالْخُصُوْصِ

صادق کيږي دا ټول خلور نسبتونه دي تساوي، تباين، عُمُوْمْ وَخُصُوْصْ

مُطْلَقًا وَالْعُمُوْمُ وَالْخُصُوْصِ مِنْ وَجْهٍ فَاحْفَظْ ذٰلِكَ. **فصل**: وَقَدْ

مُطْلَقًا او عموم او خصوص مِنْ وَجْهٍ ، پس دا ټول زده کړو. فصل: او کله

يُقَالُ (۱) لِلْجُزْئِيْ معني اخر وَهُوَ مَا كَانَ اَخَصَّ تَحْتَ الْعَامِ

دجزئي نوري معاني کاني بيانيږي يعني هغه مفهوم کوم چه اخص وي د اعم لاندي وي

فَاِنَّ الْاِنْسَانَ عَلٰى هٰذَا التَّعْرِيْفِ جُزْئِيٌّ لِدُخُوْلِهٖ تَحْتَ الْحَيْوَان

نو انسان په دي تعريف کښي جزئي دي له وجه ددخول نه تر حيوان لاندي

وَكَذَا الْحَيْوَانُ لِدُخُوْلِهٖ تَحْتَ الْجِسْمِ النَّامِيْ وَكَذَا الْجِسْمِ النَّامِيْ

او همدارنګه لکه حيوان چه جسم نامي دلاندي دي

لِدُخُوْلِهٖ تَحْتَ الْجِسْمِ الْمُطْلَقِ وَكَذَا الْجِسْمِ الْمُطْلَقِ لِدُخُوْلِهٖ تَحْتَ

او همدارنگه نامي چه دجسم مطلق لاندي دي او همدارنگه جسم مطلق تر جوهر

الْجَوْهَرِ وَهُوَ النِّسْبَةُ بَيْنَ الْجُزْئِيِّ الْحَقِيْقِيِّ وَبَيْنَ هٰذَا الْمُسَمّٰى

لاندي دي او دحقيقي جزئي او ددي مسمي جزئي ترمنځه نسبت

بِالْجُزْئِيِّ الْاِضَافِيِّ عُمُوْمٌ وَخُصُوْصٌ مُطْلَقًا لِاِجْتِمَاعِهِمَا فِيْ زَيْدٍ

او جزء اضافي عموم او خصوص مُطْلَقًا دي له وجه دجمع كيدو په زيد كښي

مَثَلًا وَصِدقِ الْاِضَافِيِّ بِدُوْنِ الْحَقِيْقِيِّ ـِي الْاِنْسَانِ فَاِنَّهٗ جُزْئِيٌّ

او صادق كيدل دا اضافي بغير دحقيقي نـ ـه انسان كښي خكه چه دا جزء

اِضَافِيٌّ وَلَيْسَ بِجُزْئِيٍّ حَقِيْقِيٍّ لاَ ـَ صِدقُهٗ عَلٰى كَثِيْرِيْنَ غَيْرُ مُمْتَنِعٍ.

اضافي دي او جزء حقيقي ندي خكه ددي صادق كيدل غَيْرُ مُمْتَنِع دي

**فصل**: اَلْكُلِّيَاتُ خَمْسٌ (٢) اَلْاَوَّلُ وَهُوَ كُلِّيٌّ (٣) مَقُوْلٌ عَلٰى كَثِيْرِيْنَ

فصل: كليات پينځه دي اول كلي جنس دي اودا هغه كلي دي كوم چه په ډيروا فرادو

مُخْتَلِفِيْنَ بِالْحَقَائِقِ فِيْ جَوَابِ مَا هُوَ كَالْحَيْوَانِ

محمول كيږي كوم چه په حقايقو كښي مختلف وي په جواب دماهوكښي لكه حيوان

فَاِنَّهٗ مَقُوْلٌ عَلَى الْاِنْسَانِ وَالْفَرَسِ وَالْغَنَمِ وَ اِذَا سُئِلَ عَنْهَا بِمَاهِيَ

خكه دا په فرس غنم و محمول دي كله چه ويوښتلې شيبه سوال دماهي كښي

وَيُقَالُ الْاِنْسَانُ وَالْفَرَسُ مَاهُمَافَالْجَوَابُ حَيْوَانٌ. **فصل**: اَلثَّانِيْ

چه انسان او فرس څه شي دي؟ نو په جواب كښي ويلي شي جواب حيوان دي.

اَلنَّوْعُ (٤) كُلِّيٌّ مَقُوْلٌ عَلٰى كَثِيْرِيْنَ مُتَّفِقِيْنَ بِالْحَقَائِقِ

فصل نوع دهغه كلي نوم دي چه په ډيرو افرادوباندي صادق كيږي چه متفق في الحقائق

## فِيْ جَوَابِ مَا هُوَ.

وي كنبي متفق وي، په جواب دماهو كنبي.

(۱)قوله "وَقَدْ يُقَالُ" الخ: دلته مؤلف دجزئي ديوي بلي معني بيانول غواړي يعني يو جزئي هغه دي كوم چه دتير شوي كلي په مقابله كنبي تير شوي وي ديته جزئي حقيقي ويل كيږي ځكه ددي صدق عَلَى الكَثِيْرِيْنَ همدغه شان نشي كيدي لكه دانسان اوحيوان نسبت جزئي دي او دزيد عمرو اوبكر نسبت كلي دي پس معلوم شوه چه لفظ جزئي په دواړه معني ګانو كنبي مشترك دي.

(۲)قوله "الكليات" خمس دجزئي او دكلي مفهوم دبيان نه وروسته مؤلف دپنځو كلياتو ذكر كول غواړي كوم چه دعلم منطق اصل مقصد دي.

(۳)قوله "كلي مقول" دا دجنس تعريف دي پدي كنبي لفظ كلي جنس دي او مختلفين في الحقائق فصل اول دي چه دي سره نوع خارج شوه په جواب دماهو فصل ثاني دي كوم سره چه فصل اوخاصه او عرف عام خارج شو.

(٤)كلي مقول الخ: دادنوع تعريف دي پدي كنبي لفظ كلي جنس دي كوم چه پنځه كلياتو ته شامل دي اوقول مقول عَلٰى كَثِيْرِيْنَ بالحائق فصل اول دي كوم سره چه جنس خارج شو او په جواب دماهو كنبي فصل ثاني دي دي سره فصل اوخاصه او عرض عام خارج شو.

وَلِلنَّوْعِ(۱) مَعْنًى اٰخَرُ وَيُقَالُ لَهُ النَّوْعُ الْاِضَافِيْ وَهُوَ مَاهِيَةٌ

او په نوع كنبي نوري معني ګاني هم وي او ديته نوع اضافي هم وائي او دا يو ماهيت دي

يُقَالُ عَلَيْهَا وَعَلٰى غَيْرِهَا الْجِنْس فِيْ جَوَابِ مَا هُوَ بَيْنَ(۲) النَّوْعِ

چه دا په بل كنبي په جواب دماهو كنبي ورته وائي او دحقيقي

الْحَقِيْقِيْ والنَّوْعُ الْاِضَافِيْ عُمُوْمٌ وَخُصُوْصٌ مِنْ وَجْهٍ لِتَصَادُقِهِمَا

او اضافي نوع تر مينځه عموم او خصوص مِنْ وَجْهٍ وي او دغه دواړه په انسان صادق

عَلَي الْاِنْسَانِ وَصِدقِ الْحَقِيْقِيْ بِدُوْنِ الْاِضَافِيْ فِي النُّقْطَةِ وَصِدقِ

او صدق دحقيقي په غير داضافي نه په نقطه كښي اوصدق

الْاِضَافِيْ بِدُوْنِ الْحَقِيْقِيْ فِي الْحَيْوَان .**فصل**: فِيْ تَرْتِيْب (۳)

داضافي په غير دحقيقي نه په حيوان كښي .فصل: په بيان دترتيب داجناسو

الْاَجْنَاسِ الْجِنْسُ اِمَّا سَافِلٌ وَهُوَ مَا لايَكُوْنُ تَحْتَهُ

كښي او دابه ياسافل وي او دا هغه جنس دي چه دهغي لاندي بَلْ

جِنْسٌ وَيَكُوْنُ فَوْقَهُ جِنْسٌ بَلْ اِنَّمَايَكُوْنُ تَحْتَهُ النَّوْعُ كَالْحَيْوَان

جنس نه وي او ددي دپاسه جنس وي بلكه ددي دلاندي نوع وي لكه حيوان

فَاِنَّ تَحْتَهُ الْاِنْسَانُ وَهُوَ نَوْعٌ وَفَوْقَهُ الْجِسْمِ النَّامِي وَهُوَ جِنْسٌ

خكه ددي دلاندي انسان دي دا هغه نوع ده او ددي دپاسه جسم نامي دي اوهغه جنس دي

فَالْحَيْوَان جِنْسٌ سَافِلٌ وَاِمَّا مُتَوَسِّطٌ وَهُوَ مَا

پس حيوان جنس سافل دي، اويابه جنس متوسط وي او دا هغه جنس دي چه

يَكُوْنُ تَحْتَهُ جِنْسٌ وفَوْقَهُ اَيْضًا جِنْسٌ كَالْجِسْمِ النَّامِي فَاِنَّ تَحْتَهُ

ددي دلاندي جنس وي اودپاسه هم جنس وي لكه جسم نامي خكه ددي دلاندي

الْحَيْوَان وفَوْقَهُ الْجِسْمُ الْمُطْلَق وَاِمَّا عَالٍ وَهُوَ مَا

حيوان دي او دپاسهورباندي جسم مطلق دي او يابه جنس عالي وي او دا هغه دي

لَايَكُوْنُ فَوْقَهُ جِنْسٌ وَيُسَمّٰي بِجِنْسِ الْاَجْنَاسِ اَيْضًا كَالْجَوْهَرِ

دكوم دپاسه چه جنس نه وي او دا په جنس الْاَجْنَاس سره هم موسوم دي لكه جوهر

فَاِنَّهُ لَيْسَ فَوْقَهُ جِنْسٌ وَتَحْتَهُ الْجِسْمُ الْمُطْلَقُ وَالْجِسْمُ النَّامِي

چه ددي دپاسه بل جنس نشته دي او دي دلاندي جسم مطلق هم شته او جسم نامي

وَالْحَيْوَانِ .**فصل:** (٤) اَلْاَجْنَاسِ الْعَالِيَةِ عَشَرَةٌ وَلَيْسَ فِي الْعَالَمِ

او حيوان هم دي. فصل: اجناس عاليه لس دي او په دنيا كنبي

شَيْءٌ خَارِجٌ عَنْ هٰذِهِ الْاَجْنَاسِ وَيُقَالُ لِهٰذِهِ الْاَجْنَاسِ الْعَالِيَةِ

يوشي هم ددينه خارج نه دي ددي لسو اجناسو نه او دي اجناسو عاليه ته

اَلْمَقُوْلَاتِ الْعَشْرِ اَيْضًا اَحَدُهَا الْجَوْهَرُ وَالْبَاقِيُ الْمَقُوْلَاتِ التِّسْعِ

مقولات عشر هم ويل كيږي يو په دي كنبي جوهر دي او باقي مقولات نهه

لِلْعَرَضِ وَالْجَوْهَرِ الْمَوْجُوْدُ لَا فِيْ مَوْضِعٍ اَيْ

دعرض دي او جوهر هغه شي دي كوم چه مَوْجُوْدُ وي مگر مَوْضُوْع كنبي نه وي او دي

مَحَلٌ بَلْ قَائِمٌ بِنَفْسِهِ كَالْاَجْسَامِ.

نه محل هم واني بلكه بغير دقائم نه بل پوري لكه جسمونه

(١)قوله "وللنوع" الخ، ددي دامطلب دي چه په دوه معني كانو دنوع اطلاق كيږي چه پدي كنبي ديو بيان اوس تير شو ديته نوع حقيقي ويل كيږي ځكه يوازي همدغه دحقيقت واحده افراد ددي دلاندي داخل وي او ددي دويمه معني داده چه دماهويه جواب كنبي په يو حقيقت واحده او ددي نه علاوه په دويم باندي دجنس اطلاق وي ديته نوع اضافي وائي ځكه چه دادخپل نوعي په اعتبار سره نوع وي او دماتحت په اعتبار سره جنس

وي لکه حیوان چه ددي اطلاق انسان باندي هم دي او په نورو انواعو هم دي او دانسان دپاره جنس دي مګر دجنس نامي ترحیثیت لاندي نوع ده.

**(۲) قوله "وبَقَىَ النوع"** دنوع حقیقي او دنوع اضافي دبیان کولونه وروسته اوس مؤلف د دواړو ترمنځه دنسبت بیان کول غواړي دمؤلف په نزد ددي دواړو ترمنځه نسبت عُمُوْمْ وَخُصُوْصْ مِنْ وَجْهٍ دي مګر په شفاکښي دشیخ دکلام نه دا معلومیږي چه ددي دواړو ترمنځه نسبت دعموم اوخصوص مطلق دي چونکه دعُمُوْمْ وَخُصُوْصْ مِنْ وَجْهٍ دوه مادي دي یوه ماده دافتراق اویوه ماده اجتماع غواړي دي دپاره مؤلف ددي دري واړو مادو په لِتَصَادُقِهِمَاسره بیان وکړو.

**(۳) قوله فصل فِيْ تَرْتِيْبِ الأَجْنَاس،** دجنس دري مرتبي دي، اول اعم الْأَجْنَاس وي چه کوم جنس ددي په نسبت اعم نه وي دیته جنس عالي اوجنس الْأَجْنَاس ویل کیږي لکه جوهر، دویم اخص الْأَجْنَاس هم وي او داعم الْأَجْنَاس دلاندي هم څه ناڅه اجناس وي او څه ورباندي فوق وي لکه جسم نامي چه دحَيْوَانَاتو اونباتاتو په نسبت سره اعم دي اودا نسبت دجسم مطلق اودجوهر اخص دي دیته جنس متوسط ویل کیږي، دریم اخص الْأَجْنَاس وي چه ددي نه روسته یو جنس هم نه وي دیته جنس سافل ویل کیږي لکه حیوان.

**فائده:** دادهغه اجناسو بیان وو کوم چه اعم او اخص کیدي شي دي نه علاوه دجنس یوبل قسم هم کیدي شي او هغه داچه نه ددي دپاسه کوم جنس وي اونه ورنه دلاندي کوم جنس وي دیته جنس مفرد ویل کیږي.

**(٤) قوله "فصل الْأَجْنَاس العاليه"** داجناس عالیه بحث اګر چه دعلم الهیات سره تعلق لري مګر مصنف دا فادي دپاره اجمالا داجناس مراتب لاندي

بيانوي لكه چه وائي چه اجناس عاليه لس دي دعالم يوشي هم ددي اجناسو نه بهر ندي ددي وجه نه ددي اجناس عاليه نوم معقولات عشر دي معقولات عشره كښي يوه مقوله جوهردي اوباقي عرض دي خكه چه كوم شي فِي الْخَارِجِ مَوْجُوْدٌ وي ضرور به د دوه حالونو نه خالي نه وي چه هغه به په خپل خارج كښي دقيام دننه دمحل محتاج وي يانه ثاني ته جوهر او اول ته عرض ويل كيږي مثلا په عالم كښي يو زيد مَوْجُوْدٌ فِي الْخَارِجِ دي او يو دده رنګ هم مَوْجُوْدٌ فِي الْخَارِجِ دي ليكن زيد دخپل وجود سره په موصوف كيدو كښي دمحل طرف ته محتاج ندي چه دهغه دعدم دوجه زيد هم عدم شي او دزيد چه كوم رنګ دي هغه په وجود كيدو كښي دمحل يعني دزيد مَوْجُوْدٌ محتاج دي لكه دزيد دعدم سره درنګ عدم لازم دي.

| وَالْعَرَضُ هُوَ الْمَوْجُوْدُ فِيْ مَوْضِعٍ اَيْ مَحَلٍّ وَالْمَقُوْلَاتُ (۱) الْعَرَضِيَّةُ |
|---|
| اوعرض هغه شي دي كوم چه دمحل او مَوْضُوْع محتاج وي او مقولات عرضيه |
| هِيَ الْكَمُّ وَالْكَيْفُ وَالْاِضَافَةُ وَالْاَيْنُ وَالْمِلْكُ وَالْفِعْلُ وَالْاِنْفِعَالُ |
| دادي كم، كيف، اضافت، اين ، ملك، فعل، انفعال، |
| وَالْمَتٰي وَالْوَضْعُ وَتَجْمَعُهَا هٰذَا الْبَيْتُ الْفَارِسِيْ: |
| متي ، او وضع دي، او دفارسي په دي بيت كښي جمع شوي دي: |

مردے دراز نيكو ديدم بهر شهر امروز

باخواسته ازكرد خويش فيروز

يو اوږد كس دے مانن په ښار كښي اوليدو دخپلي خوښي څيز سره ناست او په خپل كار كښي كامياب شو.

**فصل** (۲) فِيْ تَرْتِيْبِ الْاَنْوَاعِ اِعْلَمْ ان الْاَنْوَاعَ قَدْ تُرَتَّبُ مَنَازِلَةً

داانواعو ترتيب كښي، په دې پوهه شه چه انواع دېره نه په نزول كښې په تَرْتِيْب

فَالنَّوْعُ قَدْ يَكُوْنُ تَحْتَهُ نَوْعٌ وَلَا يَكُوْنُ فَوْقَهُ نَوْعٌ فَهُوَ النَّوْعُ

شوي دي پس دنوع نه كله ښكته بله نوع وي او دپاسه وربانډې نوع نه وي ديته عالي

الْعَالِيْ وَقَدْ يَكُوْنُ تَحْتَهُ نَوْعٌ وفَوْقَهُ نَوْعٌ وَهُوَ النَّوْعُ المتوسط

نوع ويل كيږي او كله دلاندې ورنه نوع وي اودپاسه هم وي او دا متوسط نوع وي

وَقَدْ لا يَكُوْنُ تَحْتَهُ نَوْعٌ وَيَكُوْنُ فَوْقَهُ نَوْعٌ وَهُوَ النَّوْعُ السَّافِلُ

او كله دلاندې نوع وي او دپاسه نوع نوي او دا نوع سافل ده

وَيُقَالُ لَهُ نَوْعُ الْاَنْوَاعِ اَيْضًا. **فصل**: اَلثَّالِثُ الْفَصْلُ .

او ديته نوع الْاَنْوَاعِ وئيل كيږي.فصل: دريم بحث دفصل دے

(۱)قوله "المعقولات العرضية" دلته نه مؤلف دجوهر نه علاوه دباقي نهه اجناسو بيان فرمائي داپه تَرْتِيْب سره زده كړي، اول كم دي كم هغه غرض ته ويل كيږي كوم چه لذاته تقسيم اوتجزي قبول كړي پس كه چرې ددې اجزاء مينځ كښې حد مشترك وو نو هغه ته كم متصل ويل كيږي لكه مقدار اوكه نه وو هغه ته كم منفصل ويل كيږي لكه عدد بيا كم متصل په دوه قسمه دي خكه دكم متصل كه چرې اجزاء مجتمع في الوجود كيدې شو نو هغې ته قارالذات ويل كيږي لكه جسم او كه چرې مجتمع في الوجوونشو كړې نو هغې ته غير قار الذات ويل كيږي لكه زمانه، دويم كيف دې دا هغه غرض ته ويل كيږي كوم دتقسيم اوتجزي مقتضي نه وي ددې په نحو اقسامو كښې كښې غټ تفصيل دې او په لويو كتابونو كښې ددې وضاحت مَوْجُوْدٌ دي، دريم الاضافت اضافت هغه نسبت ته ويل كيږي

په كوم چه د دويم نسبت پيژندل شي او دغه دويم نسبت داول نسبت نه بغير نه پيژندل كيږي لكه پلار كيدل او خوي كيدل، ځلورم الاين اين هغه نسبت ته ويل كيږي چه دكوم متمكن په هغې مګان كښې كيدل اوپيژندل شي او دا په دوه قسمه دي، اول حقيقي، دويم غير حقيقي، كه چري متمكن ، تمكن نه وروسته مكان بچ نشي نو دا حقيقي دي او كه داسي نه وو غير حقيقي دي لكه دكوم شي اوسيدل كور يابازار ولايت كښې، پينځم الملك ملك جسم هغه هيئت ته ويل كيږي كوم چه ديوشي متصل كيدو نه عارض وي او دجسم بسره منتقل هم وي لكه كوټ چه چا اچولي وي اوياپټكي اوتړلي شي چه ددي نه كوم هيئت وي ، شپږم الفعل فعل تدريجا ديوشي دقوت نه دفعل طرف ته راويستو ته ويل كيږي لكه يخ كول ياګرمول لكه د اري دكش كولو هيئت د اره كشي په وخت كښې، اووم الانفعال انفعال دفعل هغه اثر وي يعني ديوشي تدريجا دفعل نه قوت طرف ته راويستلو ته انفعال ويل كيږي لكه دلرګي حالت د اره كشي وخت كښې، اتم المتي هغه نسبت ته ويل كيږي چه كوم شي دكون زماني طرف ته وي ددي هم دوه قسمونه دي ، يو حقيقي، دويم غير حقيقي حقيقي په زمانه كښې دهغه شي كيدل وي چه زمانه مذكوره دمسطوري زماني نه زياته نشي لكه پنجشنبه اوغير حقيقي هغه دي چه پدي زمانه كښې دزماني نه زيات وي لكه ديوشي مياشت ياكال راتلل پدي كال ياراتلل پدي مياشت كښې دكال يادمياشتي جزء وي نه دهغه پوره ټول كال يامياشت وي ، نهم الوضع وضع هغه هيئت ته ويل كيږي كوم شي چه دبل كوم شي سره د دوه دائمي نسبتونو له وجي نه عارض وي په كوم كښې چه ديوځني اجزاء وشي نسبت ددي شي بعضي اجزاء طرف ته وي او دبل نسبت دخارج طرف ته

وي لکه کیناستل دامقولات عرض اویودمقولات جوهر مثال دپاره مؤلف دفارسي ژبي یو شعر ذکر کړي دي لکه

مرد دراز دیدم نیکو بشهر امروز

باخواسته نشسته اکردخویش نیروز

دلته دمرد نه مراد جوهر دي دراز کم دي دیدم انفعال دي نیکو کیف دي شهراین دي امروز متی دي خواسته دمال په معني دي ارزر اضافت دي نشسته وضع دي کردفعل دي فیروز دکامیاب په معني دي ملك دي اویدي شعر کښي جامع معقولات په لسو کښي مَوْجُوْدٌ دي چه داشعر ددي نه اوچت دي.

بدرت سے عاشق دل شکسته

سیه کرده جسامه بکنجے نشته

پدي کښي بدرت متی دي سے کم دے عاشق اضافت دي دل جوهر دي شکسته انفعال دي سینه کیف دي کرده فعل جامه ملك دي کنجے این دي نشسته وضع دي او عربي کښي داشعر مَوْجُوْدٌ دي.

کم قَدْ تکسر قلب صبك انفا اولے بزاوية وسوّد ثوبه

په کم کښي کم دي تکسر انفعال دي قلب دي صب اضافت دي انفا اولي دي دتفعیل له باب نه دخاي نیولو په معني زاوبه وضع ده سودفعل دي بنظر ماخذ یعني سواد اوثوب ملك دي.

(۲)قوله فصل فِي تَرْتِيْبِ الْاَنْوَاعِ : دجنس پشان دنوعي هم دري مرتبې دي مګر په جنس کښي متصاعدا مراتب اخستل کیږي اویه نوع کښي متنازلا اخستل کیږي چه دکومي نوع دپاسه بله کومه نوع نه وي هغي ته نوع عالي ویل کیږي اودکومي نوع دپاسه چه بله کومه نوع وي اودلاندي

هم نوع وي هغي ته نوع متوسط ويل کيږي اودکومي دلاندي چه بله کومه نوع نه وي هغي ته نوع سافل او نوع الْاَنوَاع ويل کيږي.

سوال: لکه څنګه چه دجنس عالي نه دجنس الْاَجْنَاس په نامه سره تعبير کوي همدغه شان دنوع عالي نه هم دنوع الْاَنوَاع ويل پکار وو ددي څه وجه ده چه دجنس برعکس نوع سافل ته نوع الْاَنوَاع واني جواب دي دپاره چه ديوشي نوع کيدل دخپل مافوق نسبت سره وي اودکوم شي جنس کيدل دخپل ماتَحْتَ په نسبت سره وي پس نوع سافل چونکه اخرالْاَنوَاع وي دي وجه نه دا حقيقي نوع شوه لِهٰذَا ديته دنوع الْاَنوَاع ويل درست شو او جنس عالي چونکه ديته ويل کيږي کوم چه دټولو نه اوچت وي دي دپاره دا هم جنس حقيقي شو دي وجه ديته دجنس الْاَجْنَاس ويل صحيح شو.

**فائده:** دا مراتب دنوع اضافي دي دي وجه نه نوع حقيقي، متوسط يا عالي نشي کيدي که چيرته شي نو دابه نوع حقيقي پاتي شي.

| وَهُوَ (۱)كُلِّيٌّ مَقُوْلٌ عَلَى الشَّيْءِ فِيْ جَوَابِ اَيُّ شَيْءٍ هُوَ فِيْ ذَاتِهِ |
|---|
| دريم مميز فصل دي او دا فصل هغه کلي دي چه دا په اي شي محمول وي په ذات خپل |
| كَمَا اِذَا سُئِلَ الْاِنْسَانُ بِاَيِّ شَيْءٍ هُوَ ذَاتُهُ فَيُجَابُ بِاَنَّهُ نَاطِقٌ |
| کښي څنګه دي نو دا جواب ورکړي شي چه انسان ناطق دي |
| وَهُوَ (۲) قِسْمَانِ قَرِيْبٌ وَ بَعِيْدٌ فَالْقَرِيْبُ هُوَ |
| او دا په دوه قسم دي يو قريب او بل بعيد او قريب هغه فصل دي کوم چه ددي افرادو نه |
| اَلْمُمَيِّزُ عَنِ الْمُشَارِكَاتِ فِي الْجِنْسِ الْقَرِيْبِ وَالْبَعِيْدُ هُوَ الْمُمَيِّزُ |
| تميز کوونکي وي چه جنس قريب شرکت ساتونکي وي او بعيد هغه فصل دي کوم |

عَنِ الْمُشَارَكَاتِ فِي الْجِنْسِ الْبَعِيْدِ فَالْاَوَّلُ

چه دافرادو تميز كوونكي وي كوم چه په جنس بعيد كښې شركت لرونكي وي داول

كَالنَّاطِقِ لِلْاِنْسَانِ وَالثَّانِيْ كَالْحَسَّاسِ لَهٗ

پشان ناطق چه دا دانسان فصل قريب دي او د دويم مثال دانسان دپاره حساس دي

وَلِلْفَصْلِ(۳) نِسْبَةٌ اِلَى النَّوْعِ فَيُسَمّٰي مُقَسِّمًا

او دفصل واسطه يو طرف ته دنوع طرف ته وي او ددي نوم مُقَوِّمْ كيښودلي شوي دي

لِاَنَّهٗ يُقَسِّمُ الْجِنْسَ وَيَحْصُلُ قِسْمًا لَهٗ كَالنَّاطِقِ فَهُوَ مُقَوِّمٌ

خكه چه دا جنس تقسيموي او دده دپاره يوقسم حاصليږي لكه ناطق نو دا مقوم دي

لِلْاِنْسَانِ لِاَنَّ الْاِنْسَانَ هُوَ الْحَيْوَانُ النَّاطِقُ وَمُقَسِّمٌ لِلْحَيْوَانِ

دانسان خكه چه انسان حيوان ناطق دي او مقسم دپاره دحيوان دي

لِاَنَّ بِالنَّاطِقِ حَصَلَ لِلْحَيْوَانِ قِسْمَانِ اَحَدُهَاالْحَيْوَان النَّاطِقُ

خكه چه په ناطق سره حيوان ته دوه نوعي حاصلي شوي يو حيوان ناطق

وَالْاٰخَرُ الْحَيْوَانُ الْغَيْرُ النَّاطِقُ. **فصل** :(٤) كُلُّ مُقَوِّمٌ لِلْعَالِيْ مُقَوِّمٌ

او بل حيوان غير ناطق. فصل دعالي هر مقوم مقوم دپاره دسافل

لِلسَّافِلِ كَالْقَابِلِ لِلْاَبْعَادِ فَاِنَّهٗ مُقَوِّمٌ.

دي لكه قابل دپاره دابعادو شو خكه چه دا مقوم دي.

(۱) قوله "وهوكلي" دا دفصل تعريف دي پدي كښي كلي جنس دي او مقول عَلَي الشئ في جواب اي شئ هو فصل اول دي جنس الجنس نوع او عرض عام ئي بخارج كړل او في ذاته فصل ثاني دي ددې دوارو سره خاصه خارج كړي شوه.

(۲)قوله "وهو قسمان" يعني دفصل دوه قسمونه دي، اول قريب، دويم بعيد همدارنگه دجنس هم دوه قسمونه دي مكر تعجب دي چه مؤلف ددي دوه قسمونه ندي بيان كړي او نورېي دا هم زبات كړل چه دفصل د دواړو قسمونو په تعريف كښې دجنس دواړه قسمونه واخستل لهٰذَا مونږ تا دجنس د دوه قسمونو او ددې نه مثالونو نه خبر وو قريب ديوشي ماهيت هغه جنس دي چه دهغي ټـې ماهيات او ددي ټـې مشتركات ټـې دسوال كولو كوم جنس واقع شي همغه دهغي ماهيت اودهغي دټولو مشتركاتو سره دسوال په جواب كښې راشي لكه حيوان چه هغه دانسان دپاره جنس قريب دي اوكه څه شي ورسره يوځاي كړي او سوال وكړي چه الانسان وَالْفَرَس والغنم ماهم نوبه جواب كښې به همدغه حيوان واقع وي او جنس بعيد ديو شي ماهيت جنس ته ويل كيږي چه دګل مشتركاتو په جواب كښې راشي اودبعضي مشتركاتو په جواب كښې راشي ليكن دبعضي مشتركاتو په جواب كښې رانشي لكه جسم نامي انسان دپاره جنس بعيد دي اودلته كه چرې دانسان او درخت نه سوال كوي نو په جواب كښې جسم نامي راځي اوكه دانسان او فرس سوال كوي نو په جواب كښې به حيوان راشي نه جسم نامي او فصل قريب دماهيت هغه فصل دي كوم چه خپل افراد جدا كړي كوم چه ددي سره په جنس قريب كښې شريك وو لكه ناطق چه انسان نورو حيواناتو نه په شريك كيدو كښې دټولو افرادو نه تميز كوي كوم چه ورسره په جسم نامي كښې شريك وو.

(۳)قوله "وللفصل" ددي دا مطلب دي چه دفصل دوه كارونه دي اول داچه نوع ته دجنس نه تميز وركوي او ددي ماهيت جزء وي ددي حيثيت نه ديته مُقَوِّمٌ ويل كيږي ځكه چه هغه دماهيت په قوام كښې داخل دي دويم

دا چه دجنس تقسیم کوي لکه حیوان یو جنس دي او ناطق او ناهق او صاهلددي فصلونه دي کوم چه ددي جداجدا تقسیم کوي.

(٤)قوله "فصل کل مقوم" الخ، یعني هر فصل کوم چه داخل او جزو حقیقي دنوع عالي کیږي هغه داخل او دجزوحقیقي نوع سافل هم وي دعالي نه مراد دادي چه دهغي دپاسه نوع نوي چه دهغي دلاندي نوع وي او که نه وي دي دپاره چه دا دنوع متوسط'ته شامل شي لکه قَابِل ابعاد دپاره یعني هغه داوږدوالي لندوالي اوغټوالي قبلولو والا وي پس دادجسم مَقُوْمٌ دي کوم چه دجسم په حقیقت کښي داخل دي او جز دي اوقَابِل ابعاد داجزو جسم نامي دحیوان اود انسان دي ددي دپاره چه قَابِل ابعاد مَقُوْمٌ دجسم جز وَمَقُوْمٌ دي او جسم مَقُوْمٌ اوجز جسم نامي دحیوان او دانسان دي او کوم څه شي چه مَقُوْمٌ اودجسم نامي جز کیږي هغه دجزو جز دهغه شي جزو بالضرورت هم وي په دي بناء قَابِل ابعاد ثلثه مَقُوْمٌ جسم نامي یو حیوان او انسان هم وي.

| |
|---|
| لِلْجِسْمِ وَمَقُوْمٌ وَالْاِنْسَان والْحَيْوَان الْاِنْسَانُ وَكَالنَّامِيْ (١) |
| دجسم دپاره او مَقُوْمٌ دي دجسم نامي، ناطق او انسان دپاره او لکه څنګه چه نامي دجسم |
| فَاِنَّهُ كَمَا اِنَّهُ مَقُوْمٌ وَالْاِنْسَان مَقُوْمٌ لِلْحَيْوَانِ وَمَقُوْمٌ لِلْاِنْسَانِ |
| مَقُوْمٌ یشان دي او دحیوان مَقُوْمٌ هم دي او دانسان دپاره هم مَقُوْمٌ دي |
| اَيْضًا وَكَالْحَسَّاسِ(٢) وَالْمُتَحَرِّكِ بِالْاِرَادَةِ فَاِنَّهُمَا كَمَا اَنَّهُمَا |
| او لکه څنګه متحرك حساس باالاراده دي دادواړه لکه څنګه چه مَقُوْمٌ دے دحیوان |
| مَقُوْمَانِ لِلْحَيْوَانِ كَذٰلِكَ مَقُوْمَانِ لِلْاِنْسَانِ وَلَيْسَ (٣) كُلُّ مَقُوْمٌ |
| دپاره او همدارنګه دانسان دپاره هم مَقُوْمٌ دي او داسې نه ده چه کوم مَقُوْمٌ سافل وي |

لِلسَّافِلِ مَقُوْمًا لِلْعَالِيْ فَاِنَّ(٤) النَّاطِقَ مَقُوْمٌ لِلْاِنْسَانِ وَلَيْسَ

هغه به عالي مَقُوْمٌ هم وي ځکه ناطق دانسان مَقُوْمٌ دے حالانکه حيوان مقومٌ نه دے.

مَقُوْمًا لِلْحَيْوَانِ . **فصل** :كُلُّ(٥) فَصْلٍ مَقُوْمٌ لِلسَّافِلِ مَقَسِّمٌ لِلْعَالِيْ

فصل هر فصل چه مقوم وي دسافل دپاره هغه مقوم وي دعالي دپاره هم

فَالنَّاطِقُ كَمَايُقَسِّمُ الْحَيْوَانَ اِلَى النَّاطِقِ وَغَيْرِ النَّاطِقِ

پس ناطق لکه څرنګه چه دناطق دحيوان تقسيم کوي يو ناطق اوبل غير ناطق

كَذٰلِكَ يُقَسِّمُ الْجِسْمَ الْمُطْلَقَ اِلَيْهِمَا

همدارنګه دجسم مطلق دپاره هم همدغه تقسيم دي يو جسم ناطق اوبل جسم غير

وَلَيْسَ (٦) كُلُّ مَقُوْمٌ لِلْعَالِيْ مَقْسَمًا لِلسَّافِلِ فَاِنَّ الْحَسَّاسَ

ناطق او دا خبره نشته دے چه کوم دعالي تقسيم کوي هغه به دسافل تقسيم هم کوي

مَثَلًا يُقَسِّمُ الْجِسْمَ النَّامِيْ اِلَى الْجِسْمِ النَّامِيْ الْحَسَّاسِ وَاِلَى الْجِسْمِ

ځکه دمثال په طور حساس تقسيم کوي جسم نامي يو جسم نامي حساس دويم قسم

النَّامِيْ الْغَيْرِ الْحَسَّاسِ وَلَا يُقَسِّمُ الْحَيْوَانَ اِلَيْهِمَا

جسم نامي غير حساس او دحيوان تقسيم نه کوي چه دا په دوه قسم دي

فَاِنَّ كُلَّ حَيْوَانٍ حَسَّاسٍ وَلَا يُوْجَدُ حَيْوَانٌ غَيْرَ حَسَّاسٍ.

ځکه هر حيوان حساس وي او حيوان غيرحساس نه موندل کيږي.

**فصل** : اَلْكُلِّيْ(٧) الرَّابِعُ الْخَاصَّةُ.

فصل: څلورم کلي خاصه ده

(۱)قوله "کالنامي" او لکه څنګه چه مَقُوْمٌ جسم او جزو نامي دي حيوان دهغي مَقُوْمٌ دي او جزو چونکه جسم نامي مَقُوْمٌ اوجزو حيوان دي پس

نامي دحيوان جزو او مَقُوْمٌ ضروري اونامي دانسان مَقُوْمٌ دي چونکه نامي دجسم نامي مَقُوْمٌ دي او جسم نامي دحيوان مَقُوْمٌ دي او حيوان دانسان مَقُوْمٌ دي پس نامي دانسان هم مَقُوْمٌ شو.

(۲)قوله "كَالْحَسَّاسِ" لكه څنګه چه حساس اومتحرك باالاراده دواړه دمقوم اوحيوان جزو دي همدغه شان دانسان هم مَقُوْمٌ دي ددي خبري په سبب چه حساس او متحرك باالاراده دحيوان جزو دي او حيوان دانسان مَقُوْمٌ اوجزو دي پس حساس او محرك باالاراده دذكرشوي وجه سره انسان مَقُوْمٌ وي.

(۳)قوله "وَلَيْسَ كُلُّ مَقُوْمٍ" الخ، او دهر مَقُوْمٌ سافل عالي مَقُوْمٌ نه وي دي وجه چه دهر سافل مَقُوْمٌ عالي نشته دي پس سافل مَقُوْمٌ هر څنګه دعالي مَقُوْمٌ وي.

(٤) قوله فَانَ النَاطق الخ، دي دپاره چه ناطق مَقُوْمٌ دانسان اوجزو دي او حيوان ددي مقوم ندي ددي خبري په وجه چه ددي سافل يعني دحيوان مَقُوْمٌ نشته دي مګر دبعضي مَقُوْمٌ سافل مَقُوْمٌ عالي وي او هغه دغه شان دعالي مَقُوْمٌ وي او دمقسم حكم دمقوم خلاف دي لكه څنګه چه مؤلف فرمايلي دي.

(٥)قوله "كل فصل مقسم" يعني دهر جنس سافل مقسم دجنس عالي مقسم هم دي څکه ددتقسيم سافل مطلب دادي په نوع كښي ددي تَحْصِيْلِ لِهٰذَا كوم دامر سافل تَحْصِيْلِ په نوع واچول شي هم هغه عالي هم په هم هغه نوع كښي حاصل كړي لكه تَحْصِيْلِ دناطق حيوان دانسان په نوع كښي كوي او ددي تقسيم وجود حيوان ناطق يعني انسان او عدم حيوان غيرناطق طرف ته كيږي همدغه شان جسم نامي او دجسم مطلق تقسيم او

تَحْصِیْل دجسم نامي ناطق یاجسم ناطق انسان دي لکه چه جسم نامي غیر ناطق یاجسم غیر ناطق دیوبل نوع دي.

(٦)قوله "ولَیْسَ کُلُّ مقسم" الخ، دهر مقسم عالي دسافل مقسم ندي ددي دپاره چه فصل اګرچه دمقسم عالي دي لیکن کله چه عالي دسافل مقسم ندي لِهٰذَا افصل مذکو دسافل مقسم نه وي لکه حساس مثلا دجسم نامي تقسیم جسم نامي حساس او جسم نامي غیر حساس طرف ته کوي او دوه نوع مَوْجُوْدٌ وي مګر دحیوان تقسیم او تَحْصِیْل نه کوي ځکه چه دجسم نامي دکوم تقسیم چه حساس کوي هغه په حقیقي کښي دحیوان جزو دي چه دا حساس دي مګر دغیر حساس تقسیم چه کوم دجمع نه متحقق کیږي ځني فصل قسم لِلْعَالِيْ مقسم لِلسَّافِلِ دپاره هم وي لیکن دا هغه فصلونه دي کوم چه داول نه دسافل تقسیم کوي داسي لکه ناطق لکه ځنګه چه دجوهر دپاره مقسم دي همدغه شان د حیوان دپاره هم مقسم دي یاپه عین خارج شرافت لري لِهٰذَا جنس او فصل او نوع یې مقدم کړل او خاصه او عرض عام یې مؤخر کړل لکه چه یواځي خاصه معروف وي خلاف دعرض عام لِهٰذَا اول یې خاصه بیان کړه اوروسته یې عرض عام بیان کړو.

(٦) قوله الکُلِّيُّ الرابع الخاصة" سوال دخاص بیان یې دفصل نه روسته ولي وکړو؟ جواب چونکه جنس اوفصل دماهیت دپاره جزوي وي او نوع عین ماهیت دي اوخاصه او عرض عام دماهیت نه خارج دي نه جزو او عین عین جزو خارج باندي شرافت لري چونکه عین اوجزء ماهیت نه نشي جدا کیدلي اودخارج جداکیدل اګر چه ضروري ندي او جداکیدل ممکن دي یعنی په پینځه کلیاتو کښي ځلورم خاصه دي او خاصه په دوه قسمه ده

اول شامله، دويم غير شامله. خاصه شامله هغې ته ويل کيږي کوم چه ديو حقيقت ټولو افرادو ته شامل وي لکه ضاحك بالقوه او کاتب بالقوه حقيقيت دانسان دپاره اوغير شامله هغه ده کوم چه دحقيقيت ټولو افرادو ته شامله نه وي مثلا ضاحك بالفعل او کاتب بالفعل حقيقيت دانسان دپاره.

فائده: حقيقي خاصه صرف همدغه خاصه شاملې دي او خاصه غير شامله دحقيقت خاصه همدغه افرادو دپاره؟ خاص دي اودعام افرادو دپاره هم خاصه دي مکر بالعرض چه صاحب کتاب دخاص کوم تعريف بيان کړي دي ددي نه علاوه په يوه بله معني باندي هم دخاصي اطلاق کيدل وي ديته خاصه اضافه ويل کيږي لکه ماشئ دانسان دپاره خاصه ده بالقياس الي الشجراللبته بالقياس الي الحَيْوَان خاصه ندي دخاصي ددي معني حاصل دادي چه ديو شي سره خاص وي او په بل شي کښې اونه موندل شي اګر چه دغه داولني شي سره مشترك في الحقيقت هم نه وي.

وَهُوَ (۱) كُلِّيٌّ خَارِجٌ عَنْ حَقِيْقَةِ الْأَفْرَادِ مَحْمُوْلٌ عَلٰى أَفْرَادٍ وَاقِعَةٍ

او دا يو کلي دي کوم چه دافرادو دحيثيت نه خارج او په خپلو افرادو محمول وي

تَحْتَ حَقِيْقَةٍ وَاحِدَةٍ فَقَطْ كَالضَّاحِكِ لِلْإِنْسَانِ وَالْكَاتِبِ لَهُ

کوم چه ديو حقيقيت لاندي وي مثلا ضاحك دانسان دپاره اوکاتب دانسان دپاره خاصه ده

**فصل** : اَلْخَامِسُ مِنَ الْكُلِّيَّاتِ اَلْعَرَضُ الْعَامِ وَهُوَ(۲) الْكُلِّيُّ الْخَارِجُ

فصل: پينځم قسم دکلياتو عرض عام دي او دا هغه کلي دي کوم چه ديو حقيقت نه غير

الْمَقُوْلُ عَلٰى أَفْرَادِ حَقِيْقَةٍ وَاحِدَةٍ وَعَلٰى غَيْرِهَا كَالْمَاشِيْ الْمَحْمُوْلِ

او په خپلو افرادو محمول وي لکه ماشي چه دا په انسان او فرس په دواړو حقيقتونو

عَلٰى اَفْرَادِ الْاِنْسَانِ وَالْفَرَسِ. **فائدة**: وإذا قد علمتَ مَا ذَكَرْنَا

افرادو محمول وي. **فائده**: تاته دمخکښې بيان نه معلوم شو کوم چه موږ ذکر کړي دي

اَنَّ الْكُلِّيَاتَ (۳) خَمْسٌ اَلْاَوَّلُ الْجِنْسُ والثَّانِيْ النَّوْعُ والثَّالِثُ

چه کليات پنځه دي اول جنس دويم نوع دريم

الفصل وَالرَّابِعُ اَلْخَاصَّةُ والْخَامِسُ الْعَرَضُ الْعَامِ فَاعْلَمْ

فصل څلورم خاصه پنځم عرض عام دے، په دي پوهه شه

اَنَّ الثَّلَاثَةِ الْاَوَّلِ(٤) يُقَالُ لَهَا(٥) الذَّاتِيَاتُ وَيُقَالُ لِلْاُخْرَيَيْنِ

چه اولني دري کلياتو ته ذاتيات او دي دوو ته عرضيات ويل کيږي

الْعَرَضِيَاتُ وَقَدْ يَخْتَصُّ(٦) الْاِسْمُ الذَّاتِيْ بِالْجِنْسِ وَالْفَصْلِ فَقَطْ

او کله کله دذاتي نوم دفصل سره هم مخصوص کيږي يعني په دي استعمال کښې

وَلَا يُطْلَقُ عَلَي النَّوْعُ بِهٰذَا الْاِطْلَاقِ لَفْظُ الذَّاتِيْ.

دذاتي اطلاق په نوع نه کيږي.

(۱)قوله "وهو كلي خارج" الخ، دادخاصي تعريف دي پدي کښې لفظ کلي جنس دي کوم چه پنځو کلياتو ته شامل دي او خارج عن حقيقيت الافراد فصل دي دکوم نه چه جنس ، فصل نو ع دري واړه خارج کړل ځکه دا دري واړه خارج عن الحقيقت ندي بلکه داخل في الحقيقت دي اومحمول علي افراد الخ ددي قيد لرولو سره عرض عام راووتلو.

(۲)قوله "وهو الكلي الخارج" الخ، دادعرض عام تعريف دي پدي کښې لفظ کلي جنس دي او الخارج فصل دي دکوم سره چه جنس ، فصل ، نوع خارج کړل اويه قيد علي افراد واقعه تحت حقيقيت واحده وغيره دقيد

خاصه ووتلو ځکه چه هغه دحقیقت واحد افرادو باندې محمول کیږي.
(۳)قوله "الکلیات خمس دپنځه کلو وجه دحصر داده چه دکلي صرف درې شقونه دي، اول دخپلو جزیاتو دپاره نفس ماهیت وي، دویم دخپل جزئیاتو ماهیت کښې داخل وي، دریم دخپلو جزیاتو حقیقت نه خارج شو که چرې اول شق وي نو هغه نوع ده او که دویم شق وي که دخپلو جزئیاتو دماهیت او دویمه نوع دپاره ټول مشترك وي نو جنس دي او که نه وو فصل دي او که دریم شق وي او دیو حقیقت سره خاص وي نو دا خاصه ده او که نه وي عرض عام دي.
(٤)قوله "فاعلم ان الثلاثة الاول" الخ، دا ذاتي دوه تفسیرونه دي، اول کوم چه دخپل جزئیات حقیقت دي داخل وي، دویم کوم چه دذات نه خارج نه وي په اولني تفسیر نوع ته ذاتي نه وئیلې کیږي او د دویم تفسیر په بناء سره نوع هم په ذاتي کښې داخل دي.
اشکال: نوع ته په هر صورت کښې ذاتي ویل صحیح ندي ځکه ذاتي هغه دي کوم چه دذات طرف ته منسوب وي او نوع پخپله ذاتي وي نه داچه دذات طرف ته منسوب نو بیاد دواړو تر مینځ تغایرولې راغلو؟ حالانکه دمنسوب او دنه منسوب اولیه تغائر ضروري.
جواب: که چرې ماهیت دنوع طرف ته منسوب کړي دیته ذاتي ویل کیږي نو اشکال صحیح دي مګرمونږ دماهیت شخصیه طرف ته منسوب کړي نو ع ته ذاتي ویل کیږي اګر چه په دغه صورت کښې هم تغائر حقیقي نه دي مګر تغائر اعتباري ضرور دي او په منسوب او منسوب الیه کښې دومره تغائر کافي دي ددې جواب نه وروسته دشیخ ددې جواب ورکولو ضرورت ته اورسیږي کوم چه ددې نه منقول دي چه دذاتي لغت اعتبار په نسبت

ضرورت دلالت کوي مکر زمونږ کلام دلغوي حیثیت نه ندي بلکه داصطلاح حیثیت نه دي او اصطلاحي معني واخله په ذاتي کښي دنسبت معني باقي نه پاتي کيږي.

(٥)قوله "یُقَالُ ها الذاتیهات الخ، تراوسه پوري دذاتي دوه تفسیرونه بیان کړل دکوم نه چه ښکاره معلومه ده چه دجنس فصل نوع نه ذاتیات ویل د دویم تفسیر په بناء باندي دي او داولني تفسیر په بناء صرف جنس او فصل ذاتي دي نوع لي ندي.

(٦) قوله وَقَدْ یختص،الخ، دا دذاتي اولني تفسیر په بنا دي.

| فصل: اَلْعَرَضِيْ (١) اَعْنِيْ اَلْخَاصَّةُ والْعَرَضُ الْعَامِ يُنْقَسَمُ اِلَي لَازِمٍ |
|---|
| عرض يعني خاصه او عرض عام دهر يو دوه دوه قسمونه دي يو لازم |
| وَمُفَارِقٍ فَاللَّازِمُ مَا يَمْتَنِعُ اِنْفِكَاكُهُ عَنِ الشَّيْءِ اِمَّا بِالنَّظَرِ اِلَي |
| دويم مفارق، لازم هغه دي چه ددي دمعروض نه جدائي محال وي برابره ده که دماهيت |
| اَلْمَاهِيَةِ كَالزَّوْجِيَةِ لِلْاَرْبَعَةِ وَالْفَرْدِيَةِ لِلثَّلَاثَةِ فَاِنَّ اِنْفِكَاكُ |
| په لحاظ سره وي لکه دزوجيت په لزوم اربعه دپاره او دفرديت په لحاظ په لزوم ثلاثه |
| اَلزَّوْجِيَةِ عَنِ الْاَرْبَعَةِ وَالْفَرْدِيَةِ عَنِ الثَّلَاثَةِ مُسْتَحِيْلٌ اِمَّا بِالنَّظَرِ |
| کښي چه زوجيت (جفت) دڅلورو نه او فرد دطاق د دريونه جدائي نه کيږي اوياپه |
| اِلَي الْوُجُوْدِ كَالسَّوَادِ لِلْحَبَشِيْ فَاِنَّ اِنْفِكَاكُ السَّوَادِ عَنْ وُجُوْدِ |

نظر کولو سره دحبشي سړي توروالي ته څکه چه دحبشي د وجود دتوروالي لري کول

| اَلْحَبَشِيْ مُسْتَحِيْلٌ لَا عَنْ مَاهِيَتِهِ لِاَنَّ مَاهِيَتُهُ الْاِنْسَانُ وَظَاهِرٌ |
|---|

محال دي او حبش دماهيت نه توري وي څکه چه ددي ماهيت"انسان دي او دا ښکاره

اَنَّ السَّوَادَ لَيسَ بِلَازِمٍ لِلْاِنْسَانِ والْعَرَضُ الْمُفَارِقُ مَا

خبره ده چه دانسان دپاره تورروالي لازمي ندي او عرض مفارق هغه دي چه دچا دلزوم نه

لَمْ يَمْتَنِع اِنْفِكَاكُهُ عَنِ الْمَلْزُوْمِ كَالْكِتَابَةِ بِالْفِعْلِ لِلْاِنْسَانِ

جدائي ممتنع نه ده لکه څنګه چه دانسان دپاره لکه څنګه چه دکاتب انسان دپاره

وَالْمَشْيِ بِالْفِعْلِ لَهُ. **فصل**: والْعَرَضُ اللَّازِمُ قِسْمَانِ(٢) اَلْاَوَّلُ مَا

فورا او يا دانسان دپاره ماشي.کيدل دي عرض لازم په دوه قسمه دي اول هغه کوم چه

يَلْزِمُ تَصَوُّرُهُ مِنْ تَصَوُّرِ الْمَلْزُوْمِ كَالْبَصَرِ لِلْاَعْمٰي والثَّانِيْ ما

دملزوم دتصور سره دده تصور لازم وي لکه دبصر تصور دنابينائي دپاره او دويم قسم چه

يَلْزِمُ مِنْ تَصَوُّرِ الْمَلْزُوْمِ و اللَّازِمِ الْجَزْمِ بِاللُّزُوْمِ كَالزَّوْجِيَةِ

هغه چه لازميږي دتصور د ملزوم نه اولازم دي جزم په لزوم سره لکه زوجيت

لِلْاَرْبَعَةِ مِنْ تَصَوُّرِ الْاَرْبَعَةِ وَتَصَوُّرُ مَفْهُوْمِ الزَّوْجِيَّةِ يَجْزِمُ بَدَاهَةً

د څلورو دپاره سره دزوجيت تصور وکړي نو فورا يقين وکړي

اَنَّ الْاَرْبَعَةَ زَوْجٌ وَمُنْقَسِمَةٌ بِمُتَسَاوِيَيْنِ. **فصل**: الْعَرَضُ الْمُفَارِقُ

چه څلور جفت دي او برابر برابر تقسيم کيږي. فصل: عرض مفارق

اَعْنِيْ مَا يُمْكِنُ اِنْفِكَاكُهُ عَنِ الْمَعْرُوْضِ اَيْضًا قِسْمَانِ اَحَدُهُما

دکوم چه دمعروض نه جدائي ممکن وي دا هم په دوه قسمه دي يو هغه دي کوم چه

يَدُوْمُ عُرُوْضُهُ لِلْمَلْزُوْمِ كَالْحَرَكَةِ لِلْفَلَكِ وَالثَّانِيْ

دملزوم عروض دپاره هميشه وي لکه دفلك دپاره حرکت دويم هغه قسم چه عروض

مَا يَزُوْلُ عَنْهُ اِمَّا بِسُرْعَةٍ كَحُمْرَةِ الْخَجِلِ وَصُفْرَةِ الْوَجِلِ

زائل شي لکه سوروالي دخجالته سري دپاره او زيړوالي ديريدونکي سړي دپاره

اَوْ بِبُطْوءٍ كَالشَّيْبِ(۳) وَالشَّبَابِ. **فصل**: (۴)فِي التَّعْرِيْفَاتِ مُعَرِّفُ

او سستي کول دخوان او بوډا دپاره . فصل دے په بيان د تعريفاتو کښې معرف

الشَّيْءِ(۵) مَا يُحْمَلُ عَلَيْهِ لِاِفَادَةِ تَصَوُّرِهٖ وَهُوَ عَلٰى اَرْبَعَةِ اَقْسَامٍ

هغه شي دي چه په دي محمول وي چه دتصور دپاره فائده ورکړي او دا په څلور قسمه

اَلْحَدُّ التَّامُ وَالْحَدُّ النَّاقِصُ وَالرَّسْمُ التَّامُ وَالرَّسْمُ النَّاقِصُ فَالتَّعْرِيْفُ

دي حد تام ، حدنا قص، رسم تام، رسم ناقص ، پس تعريف

(۱)قوله "العرض اعني" الخ، کوم کلي چه دحقيقت دافرادو نه خارج وي دهغي دوه قسمونه دي اولني هغه قسم دي کوم چه مصنف په دوه فصلونو کښې بيان کړي دي لس کلي ديو حقيقت سره خاص وي نو خاصه ده او که نه وي عرض عام دي او دويم تقسيم ددي ځاي نه شروع کوي چه دهغي خاصل دادي چه مطلق کلي عرض (خاصه) ياعرض عام په دوه قسمه دي، اول لازم، دويم غير لازم (ديته مفارق هم ويل کيږي) چه کوم کلي عرض ماهيت نه کله هم نه جداکيږي چه هغه عرض لازم دي او کوم چه دماهيت نه جدا کيدي شي نو هغه عرض مفارق (غير لازم) دي دعرض لازم دوه صورتونه دي، اول دماهيت سره لازم وي، دويم وجود سره لازم وي داول صورت مثال دي دحبش توريدل نو چه هر يو حبشي وي توربه وي دشکل دحبشي سره توروالي لازم خوندي ځکه چه ممکن دمرض برص دوجه نه سپين الي پکښې راغلي وي جواب دحبشي نه مراد داندي چه دهغه دي رنګ تور وي بلکه مراد دادي چه دهغه په مزاج کښې توروالي

راغلي وي لهٰذا هغه حبش باقي نشو په چا کښي چه عارضي طور سپين والي راغلي وي دي دپاره چه دهغه مزاج بدل شو لهٰذا مثال بدستور صحيح دي.

**(۲)قوله ''قسمان''** يعني دعرض لازم دوه قسمونه دي اول قسم نه لازم بَيْنَ بالْمَعْنٰى الاخص ويل کيږي او دويم قسم ته لازم بَيْنَ بالْمَعْنٰى ويل کيږي.

**(۳)قوله ''کالشيب والشباب''** دادعرض مفارق زائل بالبطوء مثالونه دي مګر شيب بوډاوالي دعرض مفارق مثال کښي پيش کول صحيح ندي ځکه چه بوډاوالي عارض وي اودمرګ پوري نه جدا کيږي او که چري دشيب نه مراد شيب غير طبعي واخستل شي نو دامثال صحيح کيدي شي ځکه چه دا د دواپانو سره ځي.

سوال: که چري تر مرګ پوري بوډاوالي زائل نشي نو دمرګ سره خو جدا کيږي لهٰذا عرض مفارق مثال صحيح شو مګر کله چه مرګ راغي نو هغه ذات محل دشيب اوشباب هم بالکل نه وي او دعرض مفارق مطلق دي چه ذات باقي شي او مرض زائل نشي.

**(٤)قوله ''فصل في التعريفات''** چونکه دمنطقي اصل مقصد دشارح قول او حجت نه بحث کول دي ددي دپاره دشارح مقدمات دبيان کولو نه روسته مؤلف دشارح قول بيانوي.

**(٥) قوله معرف الشئ:** معرف (علي وزن موصوف اسم فاعل تعريف نه) دمعرف معني دپيژندګلو کولو ده داهل منطق په اصطلاح کښي دمعرف معني په کوم شي باندي ددي عرض نه محمول کول چه ددي دحقيقت تصورو کولاي شي او ددي نه څه قدري امتياز عن الغير حاصل وي نو هم هغه هم په معرف کښي داخل دي او حدناقص چه تعرف (بالفتح) دنسبت نه معرف (بالکسر) اظهر(زياده ظاهر) او دالمکسوف او اعرف (زيات

مشهور) کیدل ضروري دي ځکه دمخاطب په وړاندې معرف او معرف نامعلوم وي یا هغه دمعرف معرف پیژندلي وي نو دتعریف نه کومه فائده حاصله نه وي.

فائده: تعریف الشئ بنفسه نشي کیدلي دي دواړه که چرې هغه داپیژني نو دتعریف ضرورت به بالکل رانشي.

فائده: په تعریف کښې مشترك او نادرالفاظ استعمالول او داسماء مجازي راوړل صحیح ندي.

فائده: پدې کښې اختلاف دي چه تعریف باالاعم او باالاخص جائز دي یاندې؟ دمتقدمینو په نزد مطلق تعریف کښې جائز دي ځکه ددې نه دامتیاز په وجه حاصل کیږي او دمتاخرینو په نزد جائز ندي دوي وائي چه صرف تعریف بالمساوي کیدي شي.

إِنْ كَانَ بِالْجِنْسِ الْقَرِيْبِ وَالْفَصْلِ الْقَرِيْبِ يُسَمّٰى (۱) حَدًّا تَامًّا

که په جنس قریب سره وي او فصل قریب سره وي، دیته حد تام وائي

كَتَعْرِيْفِ الْإِنْسَانِ بِالْحَيْوَانِ النَّاطِقِ وَإِنْ كَانَ بِالْجِنْسِ الْبَعِيْدِ

لکه تعریف دانسان په حیوان ناطق سره او که تعریف په جنس بعید

وَالْفَصْلِ الْقَرِيْبِ أَوْ بِهِ وَحْدَهُ يُسَمّٰى حَدًّا نَاقِصًا وَإِنْ كَانَ

او فصل قریب سره وي او یا په یو سره وي دیته حدناقص وائي او که په

بِالْجِنْسِ الْقَرِيْبِ وَالْخَاصَّةُ يُسَمّٰى (۲) رَسْمًا تَامًّا وَإِنْ كَانَ بِالْجِنْسِ

جنس قریب او خاصې سره وي نو دې ته رسم تام وائي او که چیرته په جنس

الْبَعِيْدِ وَالْخَاصَّةِ أَوْ بِالْخَاصَّةِ وَحْدَهَا يُسَمّٰى رَسْمًا نَاقِصًا ، مِثَالُ

بعید او خاصه سره وي یا یوازې په خاصه سره وي دې ته حد ناقص وائي مثال

الْحَدِّ النَّاقِصِ تَعْرِيْفُ الْإِنْسَانِ بِالْجِسْمِ النَّاقِصِ اَوْ بِالنَّاطِقِ فَقَطْ

دحدناقص تعريف دانسان په جنس ناقص سره او يا صرف په ناطق سره

وَمِثَالُ الرَّسْمِ التَّامِّ تَعْرِيْفُ الْإِنْسَانِ بِالْحَيْوَانِ الضَّاحِكِ وَمِثَالُ

او مثال د رسم تام تعريف دانسان په حيوان ضاحك سره او مثال درسم ناقص

الرَّسْمِ النَّاقِصِ تَعْرِيْفُهُ بِالْجِسْمِ الضَّاحِكِ اَوْ بِالضَّاحِكِ وَحْدَهُ

لكه تعريف دانسان صرف په جسم ضاحك سره يوازي

وَلَا (٣) دَخْلَ فِي التَّعْرِيْفَاتِ لِلْعَرَضِ الْعَامِّ لِاَنَّهُ لَا يُفِيْدُ التَّمِيْزَ.

او عرض عام ته په تعريفاتو كښي څه دخل نشته ځكه دا د امتياز څه فائده نه وركوي.

**فصل** : اَلتَّعْرِيْفُ قَدْ يَكُوْنُ حَقِيْقِيًّا كَمَا ذَكَرْنَا وَقَدْ يَكُوْنُ

تعريف كله كله حقيقي وي .لكه څنګه چه مونږ ددي ذكر وكړو او كله

لَفْظِيًّا وَهُوَ مَا يُقْصَدُ بِهِ تَفْسِيْرُ اللَّفْظِ كَقَوْلِهِمْ

لفظي وي دا هغه تعريف دي چه دكوم نه تفسير مدلول لفظ مقصود وي لكه چه خلق

سَعْدَانَةُ(٤) نَبْتٌ وَالْغَضَنْفَرُ الْاَسَدُ وَهٰهُنَا قَدْ تَمَّ بَحْثُ التَّصَوُّرَاتِ

وائي چه سعدانه يو ګيا ده او غضنفر اسد دي ترديٍ ځايه دتصوراتو بحث تمام شو

اَعْنِيْ قَوْلُ الشَّارِحِ.اَلْبَابُ الثَّانِيْ فِيْ بَيَانِ الْحُجَّةِ وَمُتَعَلِّقَاتِهَا.

يعني قول دبحث شارح تمام شو. دويم باب دي په بيان دحجت او ددي دمتعلقاتو كښي

**فصل في القضايا** اَلْقَضِيَّةُ (٥) قَوْلٌ يَحْتَمِلُ(٦) الصِّدْقَ وَالْكِذْبَ

فصل دي په بيان دقضيو كښي او قضيه يو قول دي چه احتمال دصدق او كذب د لري

وَقِيْلَ(۷) قَوْلٌ يُقَالُ لِقَائِلِهِ اِنَّهُ صَادِقٌ اَوْ كَاذِبٌ

او ځنو ونيلي دي چه دا يو قول دے چه ددي ويونکي ته دروغژن او يا رښتيا

وَهِيَ قِسْمَانِ حَمَلِيَّةٌ وَشَرْطِيَّةٌ اَمَّا الْحَمَلِيَّةُ فَهُوَ مَا

ويونکي ويل کيږي او دا په دوه قسمه ده حمليه او شرطيه حمليه هغه قضيه ده چه

حُكِمَ فِيْهَا بِثُبُوْتِ شَيْءٍ لِشَيْءٍ اَوْ نَفْيِهِ عَنْهُ

په هغي کښي دا حکم شوي وي دثبوت يو شي دبل شي دپاره اودنفي ديوشي دبل شي نه

كَقَوْلِكَ زَيْدٌ قَائِمٌ و زَيْدٌ لَيْسَ بِقَائِمٍ وَ اَمَّا الشَّرْطِيَّةُ فَمَا

لکه ستا دا قول زيد قائم او زيد ليس بقائم او هر چه شرطيه ده نو دا هغه ده په کومه

لَا يَكُوْنُ فِيْهِ ذٰلِكَ الْحُكْمِ ، وَقِيْلَ.

کښي چه دا حکم نوي، او بعضو ونيلي دي.

(۱)قوله "حداتاما، حد په لغت کښي منع کولو ته وائي اوتام دکامل په معني دي چونکه دمعرف په دي قسم کښي ټول ذاتيات مَوْجُوْدٌ وي کوم چه د دخول دغير نه مانع وي دي وجي نه په حدتام سره مسمي کړي شو او ددي تقرينه به تاته دحدناقص تسميه وجه هم معلوم شوي وي.

(۲)قوله "يُسَمّٰي رسماً تاماً" رسم په لغت اثرات او نشاني ته ويل کيږي دا تعريف تعريف بالذات سره ندي بلکه بالخارج اللازم سره دي کوم چه دذات اثروي پدي وجه ورته رسم وائي که چرې پدي کښي جنس قريب مذکور وي نودحد تام مشابهت دوجه نوديته به رسم تام ويل کيږي او که چرې جنس قريب پدي کښي ذکر شوي نه وي نه رسم ناقص ورته ويل کيږي.

(۳)قوله "ولادخل" الخ، يعني دمعرف په باب کښي دعرض عام څه کار نشته دي ځکه دمعرف فائده ياتميز عن الغير نه وي يا اطلاع علي الذاتيات باندي وي اوچونکه دعرض عام نه پدي دواړو کښي څه فائده نه وي نو دي وجه نه يې په معرف کښي ددي څه ذکر اونکړلو.

**فائده**: دمعرف ټول څلور اقسام وي، اول حدتام، دويم حدناقص، دريم رسم تام څلورم رسم ناقص دحصر وجه داده چه تعريف صرف په ذاتيات سره وي اويابه په ذاتيات سره نه وي بلکه ځني به پکښي عرضيات هم وي پس که چري په ذاتيات سره وي او ټول ذاتيات ذکر شوي وي نو هغه حدتام دي او که چري ځني ذاتيات حذف شوي وي نو هغه حد ناقص دي او که تعريف صرف په ذاتيات سره نه وو نو که چري دجنس قريب اودخاص نه مرکب وو نو رسم تام دي او که نه وو رسم ناقص دي.

(٤)قوله "سعد انه نبت، سعدانة يو ازغي لرونکي بوټي دي کوم چه اوښان په شوق سره خوري نودلته نبت دسعدانة نه عام دي دا پدي وجه چه دنبت معني مطلق گياده هري گياته نبات ويل کيږي. اوسعدانة ديوي خاصي گيا نوم دي.

**فصل**: دشارح دقول دوضاحت کولو نه وروسته مؤلفْ دحجت مباحث شروع کول غواړي او دټولو نه مخکښيددي مقدمات بيانوي.

(٥)قوله "القضية" دقضي اطلاق په الفاظو قضيه باندي هم کيږي اودقضيه معاني باندي هم کيږي په نورو الفاظو کښي داسي وائي چه په قضيه ملفوظه او په قضيه معقوله په دواړه دقضي اطلاق کيږي دغه اطلاق يابالاشتراك دي او يا بطور حقيقيت او مجاز سره دي چه حقيقة هر قضيه معقوله او مجازا تسميه الدَّالّ په اسم مدلول قضيه پدي کښي شق ثاني راجح

دي څکه چه دمنطقیانو په نزد اعتبار دقضیه معقولې دي.

(٦) **قوله**:قول، دقضي په شان دقول اعتبار هم په قول ملفوظ او په قول معقول باندي وي قضیه معقول په جنس قول معقول دي او قضیه ملفوظ جنس قول ملفوظ دي.

(٧) **قوله** "**وقیل**" دادقضي دویم تعریف دي داتعریف پدي اعتبار سره دي چه صدق او کذب دمتکلم صفات دي او اولني تعریف پدي اعتبار سره وو چه صدق او کذب دقضیه صفات وو.

| اَلشَّرطِيَّةُ مَا(١) يَنحَلُّ اِلٰي قَضِيَّتَيْنِ كَقَوْلِنَا اِنْ كَانَتِ |
|---|

شرطیه هغه قضیه ده کومه چه دوه قضیو طرف ته راخکل کوي لکه داقول زمونږ که

| الشَّمْسُ طَالِعَةً فَالنَّهَار مَوْجُوْدٌ وَلَيْسَ اَلْبَتَّةَ اِذَا كَانَتِ الشَّمْسُ |
|---|

لمرختلي وي نو ورځ به موجوده وي او داسي به نه وي که نمر ختلي وي

| طَالِعَةً فَاللَّيْلُ مَوْجُوْدٌ فَاِذَاحُذِفَ الْاَدَوَاتُ بَقِيَ الشَّمْسُ طَالِعَةٌ |
|---|

نو شپه به موجوده وي کله چه حروف حذف کړي شو نو نمر به باقي ختلي پاتي شي

| وَالنَّهَارُ مَوْجُوْدٌ وَالْحَمَلِيَّةُ (٢) مَا لَا يَنْحَلُّ اِلٰي قَضِيَّتَيْنِ بَلْ يَنْحَلُّ |
|---|

او ورځ به موجوده وي او حملیه هغه قضیه ده چه دوه قضیو طرف ته راخکل نه کوي

| اِمَّا مُفْرَدَيْنِ كَقَوْلِنَا زَيْدٌ هُوَ قَائِمٌ فَاِنَّكَ اِذَا حَذَفْتَ الرَّابِطَةَ اَعْنِيْ |
|---|

یا به دواړه مفرد وي لکه دا قول زمونږ زید هو قائم کله چه تا رابطه حذف کړله یعني

| هُوَ بَقِيَ زَيْدٌ قَائِمٌ وَهُمَا مُفْرَدَانِ وَاِمَّا اِلٰي مُفْرَدٍ وَقَضِيَّةٍ كَمَافِيْ |
|---|

زید باقي پاتي شو او قائم هم او دا دواړه مفرد دي او یابه یو مفرد او دوه قضیو ته لکه دا

قَوْلِكَ زَيْدٌ اَبُوْهُ قَائِمٌ فَاِذَاخَلَّلْتَهُ بَقِيَ زَيْدٌ وَهُوَ

قول ستا زيد ابوه قائم دزيد پلار ولاړ دي كله چه دي كم كړو زيد باقي پاتي شو او دا

مُفْرَدٌ اَوْ اَبُوْهُ قَائِمٌ وَهُوَ قَضِيَةٌ. **فصل** :اَلْحَمْلِيَّةُ (۳) ضَرْبَانِ مَوْجِبَةٌ

مفرد دي او ابوه قائم دا هغه قضيه ده. حمليه په دوه قسمه ده يوه موجبه ده

وَهِيَ الَّتِيْ حُكِمَ فِيْهَا (٤) بِثُبُوْتِ شَيْءٍ لِشَيْءٍ وَسَالِبَةٌ

او دا هغه قضيه ده چه په دي كښي دشي په ثبوت حكم شوي وي او بله سالبه ده

وَهِيَ الَّتِيْ حُكِمَ فِيْهَا بِنَفْيِ شَيْءٍ عَنْ شَيْءٍ نَحْوُ الْاِنْسَانُ حَيَوَانٌ

او دا هغه ده كومه چه په دي كښي په نفي حكم شوي وي لكه الانسان حيوان

وَالْاِنْسَانُ لَيْسَ بِفَرَسٍ . **فصل**: اَلْحَمْلِيَّةُ (٥) تَلْتَئِمُ مِنْ اَجْزَاءٍ

والانسان لَيْسَ بفرس. حمليه د دري اجزا نه مركب ده

ثَلَاثَةٍ اَحَدُهَا الْمَحْكُوْمُ عَلَيْهِ وَيُسَمّٰي مَوْضُوْعًا(٦) وَالثَّانِيْ

يوته محكوم عَلَيْهِ او دي ته مَوْضُوْع وائي دويم ته

الْمَحْكُوْمُ بِهٖ وَيُسَمّٰي مَحْمُوْلًا (٧) وَالثَّالِثُ الدَّالُّ عَلَي الرَّابِطِ

محكوم به اودي ته محمول وائي دريم دلالت كوونكي

وَيُسَمّٰي رَابِطَةً (٨) فَفِيْ قَوْلِكَ زَيْدٌ هُوَ قَائِمٌ زَيْدٌ مَحْكُوْمٌ عَلَيْهِ

او دي ته رابط وائي، ستادي قول كښي زيد هو قائم ، زيد محكوم عَلَيْهِ

وَمَوْضُوْعٌ وَقَائِمٌ مَحْكُوْمٌ بِهٖ مَحْمُوْلٌ (٩) وَلَفْظَةُ هُوَ نِسْبَةٌ وَرَابِطَةٌ

اومَوْضُوْع ده او قائم محكوم به دي او محمول دي او لفظ هو نسبت او رابطه دي

وَقَدْ تُحْذَفُ (١٠) الرَّابِطَةُ فِي اللَّفْظِ دُوْنَ الْمُرَادِ فَيُقَالُ زَيْدٌ قَائِمٌ.

او که که رابطه لفظ حذف کیري به لفظ نه په مراد کښي داسي ویل کیږي زید قائم.

## فصل: لِلشَّرْطِيَّةِ.

فصل. دشرطیه.

(۱)قوله "ماینحل" انحلال دقضي دامطلب دي چه ددي انحلال ددوه قضیو په طرف بالقوه وي لکه داتصال ادوات وي مثلا اف اوفا او اما او غیره حذف کړي شي کوم چه ددي ترمنځه په ربط دال دي او ددي دواړه طرف ته مرکب پاتي شي که چري دحکم پدي کښي اعتبار وکړي شي نو قضیه ده.

(۲)قوله "الحملية مالاینحل"یعني حملیه قضیه هغه ده دکومي نه چه دالفاظو حذف کولو نه وروسته دوه قضي راونه وځي بلکه دوه مفرد او یوه قضیه راووځي سوال زید عالم ددي ضد زید لَيْسَ بعالم او الشَّمْسُ طالعة لزم النهار په موجودیه کښي دواړه حملي قضي دي حالانکه ددي طرفین مفرد ندي لِهٰذَا دابه شرطیه کښي داخل وي جواب زمونږ مطلب دمفرد نه عام دي کوم چه مفرد حقیقي او بالفعل وي یامفرد بالقوه او یالتاویل وي اویه دواړو مثالونو کښي اګر چه په ظاهر سره انحلال په اعتبار دنسبت حکمیه دحملي تقسیم دي.

(۳) قوله الحملية مُوجَبَة، دا په اعتبارد نسبت حکمیه سره دحملیه تقسیم دي.

(٤) قوله بثبوت شيءٍ لشيءٍ، یعني دمحمول ثبوت دمَوْضُوْع دپاره حکم وکړي شي او پدي کښي اتحاد ددي مَوْضُوْع او په محمول کښي بالذات وي یابالعرض دغه شان چه مَوْضُوْع او محمول کښي علاقه وي دیو وجود دبَل

دپاره وجود وي.

(۵)قوله "الحمليه تلتئم" (اي تترکب) من ثلاثه اجزاء داد متقدمينو تحقيق دي اودمتاخرينو خيال دي چه دقضيه اجزاء څلوردي په کتاب کښې چه کوم ددي ذکر شوي دي ددي نه علاوه څلورم جزونسبت تقيديه جوړوي.

(٦) قوله يُسَمّٰي موضوعا: يعني دمحکوم عَلَيْهِ ته مَوْضُوْع ويل کيږي ځکه چه دا ددي دپاره وضع کيږي چه پدي دنفي اوياداثبات حکم وکړي.

(۷)قوله "يُسَمّٰي محمولا يعني محکوم به ته محمول ويل کيږي ځکه چه مَوْضُوْع پدي حمل کيږي.

(۸) قوله ويُسَمّٰي رابطة، يعني عَلَيّ الرابط ته رابطه ويل کيږي ځکه چه دا په نسبت رابطه دلالت کوي او دغه للتسمية مجاز تسميه الدَّالّ باسم المدلول.

(۹)قوله "ولفظة هو لنسبت ورابطة" چونکه درابطو دپاره مستقل بالمفهوميت څه شي نه وي دي وجه نه ددي تعبير په ادات معني په حرف کيدو پکار دي چونکه په عربي ژبه کښې درابطي تعبير دپاره کوم ادات (حرف) ندي مَوْضُوْع شوي نو دا پدي وجه شو او کان يې دمستعار دپاره واخستلو لکه درابطي غير زمانيه دپاره استعمالوي او درابطي زمانيه دپاره کان استعمالوي.

(۱۰)قوله "وتحذف" الخ" يعني رابطه هم حذفوي اوبيدي صورت کښې قضيه ته ثنائيه وائي ځکه چه ددي دوه اجزاء پاتي کيږي کله چه رابطه حذف نه وي نو دي وخت کښې قضيه ته ثلاثيه ويل کيږي لکه چه پدي وخت کښې ددي دريم جزء مذکور وي.

فائده: دحذف رابط او دذکر رابط مسئله په هره ژبه کښې مختلفه ده لکه

دعربي ژبي مسئله اوس معلومه شوه اويه يوناني ژبه كښې درابطو ذكر واجب دي همدغه شان دهري ژبي عليحده عليحده قواعد او اصول دي.

أَيْضًا أَجْزَاءً وَيُسَمّٰى (١) الْجُزْءُ الْأَوَّلُ مِنْهَا مُقَدَّمًا وَالْجُزْءُ الثَّانِيْ

دپاره هم اجزاء وي اولني جزء ته مقدم او دويم جز ته

مِنْهَا تَالِيًا فَفِيْ قَوْلِكَ إِنْ كَانَتِ الشَّمْسُ طَالِعَةً فَالنَّهَار مَوْجُوْدًا

تالي وائي لكه ستا دا قول كچري نمر ختلي وي نو ورخ به موجوده وي

قَوْلُكَ إِنْ كَانَتِ الشَّمْسُ طَالِعَةٌ مُقَدَّمٌ و قَوْلُكَ كَانَ النَّهَار

دا قول ستا كه نمر ختلي وي دا مقدم دي او ستا دا قول چه ورخ به موجوده وي

مَوْجُوْدًا تَالٍ وَالرَّابِطُ هِيَ الْحُكْمِ بَيْنَهُمَا. **فصل** : وَقَدْ تُقَسَّمُ

دا تالي دي او رابطه حكم دي چه ددوي تر مينځ شوي دي. فصل: او كله كله قضيه

الْقَضِيَّةُ بِاِعْتِبَارِ الْمَوْضُوْعِ فَالْمَوْضُوْع إِنْ كَانَ جُزْئِيًّا وَشَخْصًا

دمَوْضُوْع په لحاظ تقسيمري پس مَوْضُوْع كچري جزئي او شخص معين وو

مُعَيَّنًا سُمِّيَتِ الْقَضِيَّةُ شَخْصِيَّةً (٢) وَمَخْصُوْصَةً كَقَوْلِكَ زَيْدٌ قَائِمٌ

نو دقضي نوم شخصيه او مخصوصه كيښودلي كيږي لكه ستا دا قول زَيْدٌ قَائِمٌ

وَاِنْ لَّمْ يَكُنْ جُزْئِيًّا بَلْ كَانَ كُلِّيًّا فَهُوَ عَلٰى اَنْحَاءٍ لِاَنَّهَا اِنْ كَانَ

او كچري جزي نه وه بلكه كلي وه نو دا په څو قسمه ده څكه كچري

الْحُكْمِ فِيْهَا عَلٰى نَفْسِ الْحَقِيْقَةِ تُسَمّٰى الْقَضِيَّةُ طَبْعِيَّةً (٣) نَحْوُ

حكم په نفس حقيقيت باندي وو نو ديته قضيه طبعيه وائي لكه

الْاِنْسَانُ وَالْحَيْوَانُ جِنْسٌ وَاِنْ كَانَ عَلٰى اَفْرَادِهَا فَلَا يَخْلُوْ اِمَّا اَنْ

الانسان نوع والحيوان جنس او كچري حكم په افرادو باندي شوي وو

يَكُوْنُ كَمِيَّةُ الْاَفْرَادِ فِيهَا مُبَيَّنًا اَوْ لَمْ يَكُنْ فَاِنْ بَيَّنَ

خوچه افراد پکښې بيان شوي وي او يا نوي بيان شوي نو کچري کميت دافرادو

كَمِيَّةُ الْاَفْرَادِ تُسَمَّي الْقَضِيَةُ مَحْصُوْرَةً (٤) كَقَوْلِكَ كُلُّ اِنْسَانٍ

پکښې بيان شوي وي نو ديته قضيه محصوره وائي لکه ستا دا قول كُلُّ انسان حيوان

حَيْوَانٌ وَ بَعْضُ الْحَيْوَانِ اِنْسَانٌ وَاِن لَّمْ يُبَيِّنْ يُسَمَّي الْقَضِيَةُ

او بعض الحَيْوَان انسان او کچري ورکښې مقدر بيان شوي نه وونو ديته قضيه

مُهْمَلَةً (٥) نَحْوُ الْاِنْسَانُ فِيْ خُسْرٍ. **فصل**: اَلْمَحْصُوْرَاتُ (٦) اَرْبَعٌ

حمليه وائي لکه الانسان في خسر. فصل: محصورات خلور دي

اِحْدٰها (٧) اَلْمَوْجِبَةُ الْكُلِّيَّةُ كَقَوْلِكَ كُلُّ اِنْسَانٍ حَيْوَانٌ وَالثَّانِيَةُ

يو موجبه کليه ده لکه ستا دا قول كُلُّ انسان حيوان يعني هر انسان حيوان دي دويم

اَلْمَوْجِبَةُ الْجُزْئِيَّةِ نَحْوُ بَعْضُ الْحَيْوَانِ اَسْوَدُ وَالثَّالِثَةُ السَّالِبَةُ الْكُلِّيَّةُ

موجبه جزئيه لکه بعض الحَيْوَان اسود ځني ځناور تور دي دريم قسم سالبه کليه

نَحْوُ لَاشَيْءَ مِنَ الزَّنْجِيْ بِاَبْيَضٍ وَالرَّابِعَةُ السَّالِبَةُ الْجُزْئِيَّةُ نَحْوُ

لکه لَا شَيْءَ مِنَ الزنجي بابيض څلورم قسم سالبه جزئيه ده لکه

بَعْضُ الْاِنْسَانِ لَيْسَ بِاَسْوَدٍ. **فصل**: اَلَّذِيْ يُبَيَّنُ بِهٖ

بعض الانسان لَيْسَ باسود ځني انسان تور نه وي. فصل: هغه حرف چه ددي په ذريعه

كِمِيَّةُ الْاَفْرَادِ مِنَ الْكُلِّيَّةِ وَالْبَعْضِيَّةِ يُسَمّي سُوْرًا وَهُوَ(٨)

دکلياتو دافرادو مقدر او بعضيت بيانيږي پدې سور نوم کيخودلے شوے دے او دا سور

مَاخُوْذٌ مِنْ سُوْرِ الْبَلَدِ وَسُوْرُ الْمَوْجِبَةِ الْكُلِّيَةِ كُلٌّ وَلَامُ الْاِسْتِغْرَاقِ

د سور البلد نه اخستل شوي دي او موجبه كليه دسور لفظ كُلٌّ او لام استشراقي دي

وَسُوْرُ الْمَوْجِبَةُ الْجُزْئِيَّةِ بَعْضٌ وَوَاحِدٌ مِنَ الْجِسْمِ جَمَادٌ

او سور موجبه اوجزئيه لفظ واحد دي داسي چه بعضي اويا واحد من الجسم جماد دي

وَسُوْرُ السَّالِبَةِ الْكُلِّيَةِ لَا شَيْءَ وَلَا وَاحِدَ نَحْوَ لَا شَيْءَ مِنَ الْغُرَابِ

او دسالبه كلي سور دالفظ لاشي او لاواحد داسي لاشيئ من الغراب

بِاَبْيَضٍ وَلَا وَاحِدَ مِنَ النَّارِ بِبَارِدٍ وَوُقُوْعُ النَّكِرَةِ (۹) تَحْتَ النَّفْيِ.

بابيض او يالاواحد من النار ببارد ، او دنكري دنفي لاندي واقع كيدل

(۱)قوله "وَيُسَمَّى الجزء الاصل" الخ. يعني دقضي شرطيه اول جزته مقدم ويل كيږي لكه چه دا د دويم جزنه مقدم وي والجزء للثاني مِنْهَا تاليا اودقضيه شرطيه دويم جزته تالي ويل كيږي ځكه چه دتالي معني ده روسته دراتلونكي ده نوچونكه دقضيه شرطيه جزوثاني داول نه روسته راځي دي وجه نه ديته تالي ويل كيږي.

(۲)قوله "شخصيه ومخصوصة" دي ته ددي وجه نه شخصيه او مخصوصه وائي ځكه چه ددي مَوْضُوْع شخص معين وي او مخصوص پدي وجه چه ددي مَوْضُوْع مخصوص وي.

(۳)قوله "طبعيه" دي ته طبعيه ددي وجه نه ورته وائي چه دادنفس طبعيت باندي حكم كوي په افرادو باندي نه وي او ددي دپاره پدي باندي دكميت اوجزويت حرف نه داخليږي او كه دعه دم او اطلاق لحاظ نه وي نو ديته مهمله قدمائيه ويل كيږي لكه الانسان لفي خسر چه پدي قضيه كښي ملحوظ كول صرف نفس انسان دي او داطلاق قيد پدي كښي

ملحوظ ندي.

(٤) **قوله محصورة:** دیته محصوره پدي وجه وائي چه ددي دمَوْضُوْع افراد محصوروي یعني دمخصوص کمیت ترمینځ دا داګیروي اودې ته مسوره هم وائي ځکه چه پدي کښي سور (حرف) هم مَوْجُوْدٌ وي او دسور بحث بهعنقریب راشي.

(٥) **قوله مهمله،** دیته مهمله پدي وجه مهمله وائي پدي کښي کمیت دافرادو پرینبودل کیږي او مهمله جزئیه مستلزموي دي دپاره چه کله مهمله صادقه راشي نو په ځنو افرادو به حکم ضروري ورځي او هم دغه دجزئیت معني ده.

(٦)**قوله "المحصورات اربع"** دمحصوراتو اربعه پیژندل دیر ضروري اواهم دي ځکه چه دحجت پیژندل ددي په پیژنولو موقوف دي محصورات صرف څلور دي ددي دحصر وجه داده چه په قضیه کښي په ټولو افرادو حکم وي او یا په بعضي باندي وي او دهر شق دوه شقونه وي حکم بالایجاب باندي وي یابه په سلب باندي وي پس په ټولو افرادو بالایجاب وي نو هغه موجبه کلیه ده او که په بعضي افرادو حکم بالایجاب باندي وي نو هغه موجبه جزئیه ده او یابه سلب سره په ټولو افراوحکم وي هغې ته سالبه کلیه ویل کیږي او که په ځنو افرادو حکم بالسلب وي نو هغې ته سالبه جزئیه وائي.

(٧)قوله "اَحَدُهَا الموجبة الکلیه" دموجبه کلیه دشرف دوجې یې دا مخکښي کړه.

(٨)**قوله "وهو ماخوذ، الخ** یعني سور دسور البلد نه اخستل شوي دي لکه څنګه چه دښار پناه ګاه مینار پخپله کیره کښي اخلي همدغه شان سور هم

افراد احاطه کوي او دموجبه کليه سور کل دي چه کوم يي افراد دي نه کل مجموعي او داقول ووقوع النكرة تَحْتَ النفي، يعني نكره دلاندي دنفي واقع كيدل هم دسالبي كليه سور دي څكه نكره دفرد مبهم غير معين دپاره مَوْضُوْع وي پس كله چه پدي نفي داخله شي نو دهر فرد غير معين نفي وي دكوم سره چه دټولو افرادو نفي لازم راشي.

| نَحْوَ مَا مِنْ مَاءٍ اِلَّا وَهُوَ رَطْبٌ وَسُوْرُ (۱) السَّالِبَةِ الْجُزْئِيَّةِ |
|---|

لكه مامن ماء الاوهو رطب داسي اوبه نشته چه هغه لمدي نوي او سالبه جزئي سور

| لَيْسَ بَعْضُ كَقَوْلِكَ لَيْسَ بَعْضُ الْحَيْوَانِ بِحِمَارٍ وَ بَعْضُ لَيْسَ |
|---|

لَيْسَ دي لكه ستا دا قول لَيْسَ بعض الْحَيْوَان بحمار بعضي حيوان خر نوي او بعض لَيْسَ

| كَمَا تَقُوْلُ بَعْضُ الْفَوَاكِهِ لَيْسَ بِحُلْوٍ اِعْلَمْ اِنَّ فِيْ |
|---|

دي لكه بعض الفواكه لَيْسَ بحلو خي ميوي خوږي نه وي په دي پوهه شه چه په هره

| كُلِّ لِسَانٍ سُوْراً يَخُصُّهَا فَفِيْ الْفَارِسِيَّةِ (۲) لَفْظُ هَرْ سُوْرُ الْمُوْجِبَةِ |
|---|

ژبه كښي صرف سور وي كومه چه دهغي ژبي پوري خاص وي فارسي كښي لفظ دهر

| الْكُلِّيَّةِ كَقَوْلِ الشَّاعِرِ: بيت:. |
|---|
| دموجبه كليه سور دي لكه شاعر وائي. |

هرآنكس كه در بند حرص اوفتاد

دهـــد خـــرمن زنـــدگاني بيـــاد

هر هغه انسان چه دحرص په قيد كښي پريوتو هغه به دا خپل ژوند وير برباد كړي.

| **فصل** : قَدْ(۳) جَرَتْ عَادَةُ الْمِيْزَانِيِّيْنَ اَنَّهُمْ يُعَبِّرُوْنَ عَنِ الْمَوْضُوْعِ |
|---|

داهل منطق دا عادت جاري دي چه دوي دمَوْضُوْع نه تعبير په

بج وَعَنِ الْمَحْمُوْلِ بب فَمَتٰي اَرَادُوا التَّعْبِيْرَ عَنِ الْمَوْجِبَةِ الْكُلِّيَةِ

ج سره کوي او دمحمول نه په بب سره، کله چه اراده دتعبير دموجبه کليه وکړي نو

يَقُوْلُوْنَ كُلُّ ج ب وَمَقْصُوْدُهُمْ (٤) مِنْ ذٰلِكَ الْاِيْجَازُ وَدَفْعُ تَوَهُّمِ

وائي كُلُّ ج ب مقصود ددوي ددينه اختصار كول وي، او دفع نو هم د

الْاِنْحِصَارِ. **فصل** : اَلْحَمْلُ (٥) فِيْ اِصْطِلَاحِهِمْ اِتِّحَادُ الْمُتَغَائِرَيْنِ

انحصار. فصل: حمل داهل منطق په اصطلاح کښې اتحاد د دوه متغا يرو

فِي الْمَفْهُوْمِ بِحَسْبِ الْوُجُوْدِ فَفِيْ قَوْلِكَ زَيْدٌ كَاتِبٌ وَعَمْرٌو شَاعِرٌ

په معنې کښې په اعتبار دوجود سره، ستا په دې قول کښې زيد كاتب وعمرو شاعر

مَفْهُوْمُ زَيْدٍ مُتَغَائِرٌ لِمَفْهُوْمِ كَاتِبٍ لٰكِنَّهُمَا

دزيد مفهوم جدادے چه شاعر دي اودعمر مفهوم جدا دے چه كاتب دي لكن دواړه

مَوْجُوْدَانِ بِوُجُوْدٍ وَاحِدٍ وَكَذَا مَفْهُوْمُ عَمْرٍو وَشَاعِرٍ مُتَغَائِرٌ وَقَدْ

په يو وجود کښې مَوْجُوْدْ دي همدا رنګه دعمرو مفهوم شاعر غير دي او په

اِتَّحَدَ فِي الْوُجُوْدِ ثُمَّ الْحَمْلُ(٦) عَلٰي قِسْمَيْنِ لِاَنَّهُ اِنْ كَانَ بِوَاسِطَةِ فِيْ

وجود کښې دواړه متحددي او حمليه بيا په دوه قسم ده ځکه چه دا به د في

اَوْ ذُوْ اَوِ اللَّامِ كَمَا فِيْ قَوْلِكَ زَيْدٌ فِي الدَّارِ وَالْمَالُ لِزَيْدٍ وَخَالِدٌ

يا لا پر واسطه وي لکه ستا په دې قول کښې زيد في الدار،والمال لِزَيْدٍ ، وخالد

ذُوْ مَالٍ يُسَمّٰي الْحَمْلُ بِالْاِشْتِقَاقِ وَاِنْ لَّمْ يَكُنْ كَذٰلِكَ بَلْ

ذومال، نوددي نوم حمل يا اشتقاق دي اوکه داسې نوي بلکه دي

يُحْمَلُ شَيْءٌ عَلٰى شَيْءٍ بِلَا وَاسِطَةِ هٰذِهِ الْوَسَائِطِ

حمل كولي به شي يو شي به بل شي باندي ددي واسطي نه بغير

يُقَالُ لَهُ الْحَمْلُ بِالْمُوَاطَاةِ نَحْوُ.

نو ديته بالمواطاة ويل كيږي.

(۱)قوله "وسور السالبه الجزئيه" يعني دسالبي جزئي دوه دي، اول لَيْسَ بعض، دويم بعض لَيْسَ او مؤلف د دواړو مثالونه ورکړي دي.

فائده: نورو مؤلفينو دسالبي جزئي دريم سور هم بيان كړي دي يعني لَيْسَ كل ليكن چونكه ددي دلالت مطابقي په رفع ايجاب كلي باندي دي او التزامي سلب جزئي باندي دي دي دپاره دمعني مطابقي لحاظ كوي مؤلف دسالبي جزئيه په اسوارو كښي ددي ذكر اونكړو او دبعضي لَيْسَ او دلَيْسَ بعضي دلالت په مطابقي سلب جزئي باندي وي او دلالت التزامي رفع ايجاب باندي وي دي دپاره د دلالت مطابقي په لحاظ كولو كښي اوويل دا دواړه ذكر كړې.

(۲)قوله "ففي الفارسية" الخ، يعني په فارسي ژبه كښي هر لفظ دموجبه كليه سور دي لکه پدي مثال كښي يو شي وراندي كوي همدارنكه لفظ همه هم دايجاب كلي دپاره دي او دسلب كلي دپاره لفظ نسيت دي او په اردو كښي هيڅ نشته دي او په ايجاب جزئي كښي برخ هست او په اردو كښي تهوړي دي او دسلب جزئي دپاره برخي نيست دي او په اردو كښي تهوړي نهي همدغه شان په هر ژبه كښي جدا جدا سور نشته دي مثلا اردو كښي دايجاب دپاره سب دي او دسلب كلي دپاره كچه نهي دي وغير ذلك.

(۳)قوله "وَكِنْ جرت" الخ، يعني اهل منطق داختصار دپاره دمَوْضُوْع او

دمحمول دتعبير دپاره ،ج او ب راخستي دي دبادي النظر مقتضاداده چه الف او ب واخلي ځکه چه داد نورو حروف هجانه مخکښي دي ليکن الف چونکه ساکن دي وجه نه يې الف پريښودلو بياروسته چونکه ت ث سره مشابه في الخط دي دي دپاره چه دتمايز في الخط بَيْنَ المَوْضُوْع و المحمول لحاظ اوکړلونو دا دواړه يې هم پريښودل او ج يې واخستلو.

سوال: ب دجيم نه مخکښي وي دپاره ب دمَوْضُوْع دپاره اخستل پکار وو او ج دمحمول دپاره ځکه چه مَوْضُوْع مقدم اووايې او محمول وروسته وي جواب داعكس تَرْتِيْب دايې دنبودلو دپاره اختيار کړو چه نفس ب ج مراد ندي بلکه دادمَوْضُوْع او محمول په ځاي باندي استعماليږي.

(٤)قوله "ومقصودهم ، يعني دمَوْضُوْع او محمول په ځاي باندي ج ب داختيارولو نه اهل منطق دوه مقصدونه دي، اول اختيار لکه چه بنکاره ده کل ج ب دادکل انسان حيوان نه مختصر دي، دويم رفع توهم الانحصار چه ددي نه دي دا معلوم نکړي چه دمثل حکام صرف په همدي مثال کښي فارسي دي.

(٥)قوله "الحمل في الاصطلاح اتحاد المتغائرين في المفهوم" دا بالمتغائرين متعلق دي او په حسب الْوُجُوْدِ دادبالاتحاد متعلق دي يعني دمنطقيانو په اصطلاح کښي ديته ويل کيږي چه دوه متغائرين دوجود په اعتبار سره يو کړي شي دادحمل ايجابي تعريف دي او حمل سلبي دي دهمدي نه معلوم کړي لکه زيد کاتب او عمرو شاعر دي چه پدي کښي هر يوه قضيه شخصيه ده دزيد مفهوم دکاتب مفهوم نه خارج دي ليکن زيد اودکاتب وجود په خارج کښي يو دي.

(٦)قوله "الحمل علي قسمين" يعني حمل په دوه قسم دي، اول حمل

بالاشتقاق، دويم حمل بالمواطات.

فائده: بيا حمل بالمواطات په دوه قسمه دے، اول حمل اولي، دويم حمل متعارف كه چري محمول په مَوْضُوْع باندي ذاتي اووجودي اعتبار سره حمل كړي نو داحمل اولي دي لكه الانسان انسان اودمحمول حمل په مَوْضُوْع باندي صرف دوجود په اعتبار سره وي هغه حمل متعارف دي كوم چه دكثرت استعمال په وجه په علومو كنبي شائع وي او دا په اشكال اربعه كنبي او اقسيه كنبي مفيد دي.

**فائده**: حمل متعارفه په دوه قسمه دي، اول حمل متعارف بالذات، دويم حمل متعارف بالعرض لكه الانسان كاتب او الْحَيْوَان ماش.

سوال: تاسو داول په مثال كنبي الانسان انسان پيش كړي دي او دحمل دپاره تغاير مشرط دي او دانسان انسان سره تغائر نشته؟

جواب: په حمل اولي كنبي تغائر اعتباري وي او هغه دحمل دپاره كافي دي حمل تغائر ددي وجه نه دي چه په موضع كنبي كوم انسان دي دهغي تعقل اوپوهيدل دمخكبني نه شوي وي او كوم انسان چه په محمول كنبي وي دهغي پوهيدل وروستو شوي وي.

عَمْرٌو طَبِيْبٌ وَبَكْرٌ فَصِيْحٌ. **فصل**: تَقْسِيْمٌ (۱) اٰخَرُ لِلْحَمَلِيَّةِ

لكه عمرو طبيب وبكر فصيح عمرو داكتر دي اوبكر فصيح دي. دحمليه يوبَلْ تقسيم

مَوْضُوْعُ الْحَمَلِيَّةِ اِنْ كَانَ مَوْجُوْدًا فِي الْخَارِجِ (۲) كان الْحُكْمِ

هم دي مَوْضُوْع دحمليه كه چري په خارج كنبي مَوْجُوْدُ وو او په دي قضيه كنبي

فِيْهَا باعتبار تحقق الْمَوْضُوْعِ وَوُجُوْدِهِ فِي الْخَارِجِ كَانَتِ الْقَضِيَّةُ

حكم دمَوْضُوْع دتحقق اويه اعتبار دوجود فِي الْخَارِجِ سره وونو دا به قضيه خارجيه وي

اَلسَّبْرُ (۳) وَالتَّقْسِیْمُ وَهُوَ اِنَّهُمْ یَعُدُّوْنَ اَوْصَافُ الْاَصْلِ ثُمَّ یُثْبِتُوْنَ

سبراوتقسیم دي او دوي دا په اصل اوصافو کښي شماري او بیايي ثابتوي

مَا وَرَاءَ الْمَعْنَى الْمُشْتَرَكِ غَیْرُ صَالِحٍ لِاقْتِضَاءِ الْحُکْمِ وَذٰلِكَ

معني مشترك حـ ...دن ...ه غیربل کوم موصوف مقتضي دحکم جوړولو قابل نه دي

لِوُجُوْدِ تِلْكَ الْاَوْصَافِ فِيْ مَحَلٍّ اٰخَرَ تَخْتَلِفُ الْحُکْمُ عَنْهُ مَثَلًا فِيْ

خکه چه همدغه اوصف په بل مقام کښي هم مؤجود دي مګر حکم مختلف دي یعني

الْمِثَالِ الْمَذْکُوْرِ یَقُوْلُوْنَ اَنَّ عِلَّةَ حُدُوْثِ الْبَیْتِ اَمَّا الْاِمْکَانُ اَوِ

خلاف دي مثلا په مثال مذکور کښي وائي چه دډیرو واقعو علت یاامکان دي یا

وجود یاجوهر یاجسمیت کیدل، یامرکب ددي ترکیب نه علاوه دبل علت وصف قابل

الْوُجُوْدُ اَوِ الْجَوْهَرِیَّةُ اَوِ الْجِسْمِیَّةُ اَوِ التَّالِیْفُ وَلَا شَیْءَ مِنَ

الْمَذْکُوْرَاتِ غَیْرَ التَّالِیْفِ بِصَالِحٍ لِکَوْنِهٖ عِلَّةً لِلْحُدُوْثِ

نه دي که داسي نه وي نو هر ممکن هر جوهر او هر موجودهر جسم حادث به وي

وَاِلَّا لَکَانَ کُلُّ مُمْکِنٍ وَکُلُّ جَوْهَرٍ وَکُلُّ مَوْجُوْدٍ وَکُلُّ جِسْمٍ حَادِثًا

او کنه نو اوبه کرخي هر ممکن او هر جوهر او هر موجود او هر جسم حادث

مَعَ اَنَّ الْوَاجِبَ تَعَالٰی وَالْجَوْهَرُ الْمُجَرَّدَةُ وَالْاَجْسَامُ الْاَثَرِیَّةُ

ددي باوجود واجب تعالي او جوهر او حجر او اجسام اثیربه داسي

لَیْسَتْ (٤) کَذٰلِكَ . **فصل**: وَمِنْ (٥):

نه دي. فصل دي چه د:

(۱) قوله "فصل التمثل" دي تمثیل ته فقهاء قیاس وائي او متکلمین استدلال

بالشاهد عَلَى الغائب په نامه سره مسمي کوي.مقيس عَلَيْهِ ته فقهاء اصل او مقيس ته فرع وائي او جامع مشترك ته علت وائي بالجمله قياس اوتمثيل استدلال عَلَى الغائب يوشي دي صرف بالفاظو فرق دي.

(۲) **قوله"ان يدور"** پدي باندي پدي مثال کښي پوهه شي الحدوث راخي مع التاليف يعني هربو شي ديو څو شيانو نه جوړ شوي وي هغه به حَادِثْ وي پس کور حَادِثْ دي ځکه چه دا ديو څو شيانو نه جوړ شوي دي اوواجب تعالي حَادِثْ ندي ځکه چه مؤلف ندي پدي کښي تاليف علت الحدوث دي.

(۳) **قوله"السبر"** سبر په لغت کښي امتحان کولو ته ويل کيږي (قاموس) اودلته دسبر مطلب دادي چه دمقيس عَلَيْهِ اوصاف په غور اوفکر کولو سره معلوم کړي او دا معلومات حاصل کړي چه پدي کښي کوم داسي حرف دي چه په مقيس حمليه اومقيس دواړو کښي مشترك وي مؤلف دا قول چه انملة الحدوث البيت ددي مثال بيان کړي دي.

فائده: دوران اودسبرکومي طريقي يي چه دلته بيان کړي دي دا دواړه ضعيفه دي ددي نه قطعي علم نه حاصليږي.

(٤) **قوله"ليست كذلك"** دا دفلسيفانو رايه ده اودالله تعالي نه غير ټول حَادِثْ او فاني دي الله تعالي فرمايلي دي كل من عَلَيْهَا فان ويبقى وجه ربك ذوالجلال والاكرام.

(٥) **قوله"وفي الاقسية"** الخ،دکوم قياس نه چه نتيجه معلومه شوه هغه صرف د دوه مقدمو نه جوړيږي ليکن کله دمطلوب حاصلولو دپاره دويم قياس ښودلي شي چه مقدمات بديهيه حاصلوي او نتيجه حاصله وي هغي ته قياس مرکب ويل کيږي چه کله څومره قياسو نه کيږي دهغي دوه

صورتونه دي، اول چه دهر قياس نتيجه مذكوره وي، دويم داچه صرف په اخر كبني يوه نتيجه مذكوره وي داول مثال كل ج ب وكل ب ا وكل ج ا او كل او فكل ج دوكل ده فكل ج ه ديته موصول نتائج ويل كيږي د دويم صورت مثال كل ج ب وكل ب او كل اب وكل دو كل ده فكل ج ه.

اَلْاَقْيِسَةُ اَلْمُرَكَّبَةُ قِيَاسٌ(١) يُسَمّي قِيَاسَ الْخُلْفِ وَمَرْجِعُهُ اِلي

په بعضو قياسونو كبني يو قياس دي چه قياس خلف نوم پري كيخودلي شوي دی

قِيَاسَيْنِ اَحَدُهَا الْاِقْتِرَانِي شَرْطِيُّ الْمُرَكَّبُ مِنَ الْمُتَّصِلَتَيْنِ

او ددي حاصل د دوه قياسونو وي يو اقتراني شرط كوم چه د دوه متصلو نه مركب وي

وَثَانِيهِمَا اِسْتِثْنَائِيٌّ اِحْدَي مُقَدِّمَتَيْهِ لُزُومِيَّةٌ اَعْنِيْ نَتِيْجَةَ الْقِيَاسِ

او دويم استثنائي چه يوه مقدمه لزوميه ده يعني نتيجه داول قياس

الْاَوَّلِ وَالْمُقَدِّمَةُ الْاُخْرَي مِمَّا اُسْتُثْنِيَ فِيْهِ نَقِيْضُ التَّالِيْ ، تَقْرِيْرُهُ

او د دويم مقدمه پدي كښي ددي نه وي دكوم دننه چه نقيض دتالي استثناء شوي وي

اَن يُّقَالَ الْمُدَّعِي ثَابِتٌ لَوْلَمْ يَثْبُتْ نَقِيْضُهُ وَكُلَّمَا ثَبَتَ نَقِيْضُهُ

ددي تقريرداذي چه مدعا ثابت وي ددي دپاره چه كه چري مدعا ثابت نه وي نو ددي

ثَبَتَ الْمَحَالُ وَيَنْتَجُ

نقيض به ثابت وي اوكله چه دكومي مدعا نقيض ثابت وي نو محال به ثابت وي نتيجه به

و لَوْلَمْ يَثْبُتْ الْمُدَّعِي ثَبَتَ الْمَحَالُ وهٰذَا اَوَّلُ الْقِيَاسَيْنِ

راشي چه كه چري مدعا ثابت نه وي نو محال به ثابت وي او په دي دواړو قياسونو كښي

ثُمَّ نَجْعَلُ النَّتِيْجَةُ الْمَذْكُوْرَةُ صُغْرَي وَنَقُوْلُ و لَوْلَمْ ي

د اول قياس نه بيابه د دويم د نتيجي نه صغري جوړه كړو او داسي به اووايو كه چري

يُثْبِتُ الْمُدَّعٰي ثَبتَ الْمَحَالُ وَنَضُمُّ اِلَيْهِ كُبْرٰي اِسْتِثْنَائِيًا

مدعا ثابت نه کړے شو، نو محال به ثابت شي او که ددي سره کبري او استثناء يوځاي

وَنَقُوْلُ لٰكِنَّ الْمَحَالُ لَيْسَ بِثَابِتٍ فَبِالضَّرُوْرَةِ يَثْبُتُ الْمُدَّعٰي

کړو دا به اووايو چه ليکن محال ثابت نه دے نو مدعا بالبداهت ثابته ده

وَاِلَّا لَزِمَ اِرْتِفَاعُ النَّقِيْضَيْنِ وَاِنْ اِشْتَهَيْتَ فَهْمَ هٰذَاالْمَعْنٰى فِيْ مِثَالٍ

او که داسي نه شي نو ارتفاع دنقيضينو به لازم شي او که جړي دا مضمون به جزئي

جُزْئِيٍّ تَقُوْلُ كُلُّ اِنْسَانٍ حَيْوَانٌ صَادِقٌ لِاَنَّهُ لَوْ لَمْ يَصْدِقْ لَصَدَقَ

مثال کښي واخلي نو اوبه وايو چه هر حيوان انسان دي ددي دپاره که چري دا صدق نه

بَعْضُ الْاِنْسَانِ لَيْسَ بِحَيْوَانٍ وَكُلَّمَاصَدَقَ بَعْضُ لَيْسَ بِحَيْوَانٍ

انسان نه دي نو محال به لازم شي نو نتيجه به دا راشي کله چه مدعا ثابت نه شوه

لَزِمَ الْمَحَالُ يَنْتَجُ كُلَّمَا لَمْ يَصْدِقِ الْمُدَّعٰي لَزِمَ الْمَحَالُ لٰكِنَّ

نو محال به لازم شي او نتيجه به ورکړي كلما لم يصدق المدعي لزم المحال لكن

الْمَحَالُ لَيْسَ بِثَابِتٍ فَعَدَمُ ثُبُوْتِ الْمُدَّعٰي لَيْسَ بِثَابِتٍ فَالْمُدَّعٰي ثَابِتٌ.

محال ثابت ندي نو عدم ثبوت دمدعي ندي ثابت نو مدعا ثابته شوه.

**(۱) قوله "من الخلف"** په ضمه دخاء سره معني يي ده باطل او محال او خلف بالفتح يعني دخاء په فتحي سره معني يي ده روسته دلته مراد اولني معني ده قياس خلف قياس مرکب يومثال دي ديته خلف دي وجه نه وائي چه په خپله باطله وي او نتيجه هم باطلوي محقق طوسي په اشارات کښي ليکلي چه خلف ردي او محال ته ويل کيږي اوچونکه دا قياس هم ردي او محال دي ددي وجه نه ددي دا نوم کينبودي شو.

فائده به قیاس مستقیم اوقیاس خلف کسي به څو وجو اختلاف دي اول داچه قیاس مستقیم اولاداثبات مطلوب طرف ته متوجه وي او قیاس خلف دنقیض مطلوب طرف ته دریږ دا چه قیاس مستقیم دهغه مقدماتو نه جوړیږي کوم چه دمطلوب سره مناسبت وي یاهغه مقدمي وي کوم چه دانسان قائم مقام وي او په قیاس خلف کسي داسي نه وي څلورم داچه په قیاس خلف کسي اول مطلوب وضع کوي اوبیا ددي نقیض اوبیا ددي نقیض طرف ته متوجه کوي او په قیاس مستقیم ترڅو قیاس جوړ نشي نتیجه مَوْضُوع نه وي.

**فصل** يَنْبَغِي(۱) اَن يُعْلَمَ اَنَّ كُلَّ قِيَاسٍ لَا بُدَّ لَه مِنْ صُوْرَةٍ وَ

فصل دي ددي خبري پیژندل ضروري دي چه دهرقیاس دپاره لابدي ده دصورت او

مَادَّةٍ اَمَّا الصُّوْرَةُ فَهُوَ الْهَيْئَةُ الْحَاصِلَةُ مِنْ تَرْتِيْبِ الْمُقَدَّمَاتِ

مادي نه پس صورت هغه هیئت دي کوم چه دمقدماتو دترتیب نه حصل شوي وي

وَوَضْعِ بَعْضِهَا عِنْدَ بَعْضٍ وَقَدْ عَرَفْتَ اَشْكَالَ الْاَرْبَعَةِ الْمُنْتَجَةَ

او بعضي دنورو بعضو سره کیښودل شوي وي او تا څلور شکلونه او نتیجه پیژندلي دي

وَعَلِمْتَ شَرَائِطَهَا فِي الْاِنْتَاجِ بَقِيَ اَمْرُ الْمَادَّةِ

او تاپي په نتیجه کښي شرائط هم پیژندلي دي په نتیجه کښي اوس د مادي بیان نیر

وَالْقُدَمَاءُ حَتَّي الشَّيْخُ الرَّئِيْس كَانُوْا اَشَدَّ اِهْتِمَامًا

شوي دي حتي چه قدماؤ او شیخ د رئیس ددي تفصیل اهتمام زیات کړي ور

فِيْ تَفْصِيْلِ مَوَادِ الْاَقْيِسَةِ (۲) وَتَوْضِيْحِهَا وَاَكْثَرُ اِعْتِنَاءً

ددي بحث په تفصیل سره ذکر کولو او ددي دپورته کیدو بحث ته یې زیاته توجه کوله

عَنِ الْبَحْثِ فِيْ بَسْطِهَا وَتَنْقِيْحِهَا وَذٰلِكَ لِاَنَّ مَعْرِفَةَ هٰذَا اَتَمُّ

دبحث کولو نه په تفصیل او تنقیح ددې کښې خکه چه ددې دمعرفت فائده زياته وه

فَائِدَةٍ وَاَشْمَلُ عَائِدَةٍ لِطَالِبِيِ الصَّنَاعَةِ لٰكِنَّ الْمُتَاخِرِيْنَ قَدْ طَوَّلُوا

او ددې علم طالب علماؤ دپاره ډيره ضروري ده مګر متاخرينو تفصيل زيات اورد کړې

الْكَلَامَ فِيْ بَيَانِ صُوْرَةِ الْاَقْيِسَةِ وَبَسَطُوْا فِيْهَا غَايَةَ الْبَسْطِ سِيَّمَا

په بيان دصورت دقياسونو کښې او انتهائي زيات وضاحت ئې کړې دې خاصکر

دشرطياتو متصله او منفصله قياسونو کښې سره دقلت ددې بحثونو

فِيْ اَقْيِسَةِ الشَّرْطِيَاتِ الْمُتَّصِلَةُ وَالْمُنْفَصِلَةُ مَعَ قِلَّةِ جَدْوٰى هٰذِهِ

الْمَبَاحِث وَرَفَضُوْا اَمْرُ الْمَادَةِ وَاقْتَصَرُوْا فِيْ بَيَانِهَا عَلٰى بَيَانِ

او دمادې بيان دوې ترک کړې دې او اقتصار ئې کړې دې په بيان دحدودو

حُدُوْدِ الصَّنَاعَاتِ الْخَمْسِ وَلَا اَدْرِيْ اَيُّ اَمْرٍ دَعَاهُمْ اِلٰى ذٰلِكَ وَاَيُّ

د صنعات خمسه، اوماته نه دې معلوم چه په دوئ ددې کار څه باعث وو، اوکوم سبب

بَاعِثٍ اَغْرٰى هُمْ هُنَالِكَ وَلَا بُدَّ لِلْفَطِنِ اللَّبِيْبِ اَن يَّهْتَمَّ فِيْ هٰذِهِ

دې ته راتنګ کړې دې ، دې مطلب او عظيم مقصد ته دېخوانو کتابونو ماهرانو

الْمَبَاحِثِ الْجَلِيْلَةِ الشَّانِ الْبَاهِرَةِ الْبُرْهَانِ غَايَةَ الْاِهْتِمَامِ وَيُطْلَبُ

اوليکوالانو زيات زور ورکړې دې ، او ددې دپاره ئې خصوصي اهتمام کړې دې او طلب

ذٰلِكَ الْمَطْلَبُ الْعَظِيْمُ وَالْمَقْصَدُ الْفَخِيْمُ مِنْ كُتُبِ الْقُدَمَاء

کولې شي دا عظيم مطلب او فخيم مقصد دکتابونو دقدماؤ نه

الْمَهَرَةِ وَزُبُرِ الْاَقْدَمِيْنِ السَّحَرَةِ فَعَلَيْكَ اَيُّهَا الْوَلَدُ الْعَزِيْزُ اَنْ

چه ماهرين او تجربه کار ددې علم وو، پس په تا لازم دې اې ګرانه بچيه چه نه

تَسْمَعَ نَصِيْحَتِيْ وَلَا تَنْسَ وَصِيَّتِيْ وَ اِنَّمَاقَدْ اُلْقِيَ عَلَيْكَ نُبْذًا

زما نصيحت واوري او رما وصيت هير نكړي يقينا چه بيان شو تاته څه حصه

مِمَّا يَتَعَلَّقُ بِهٰذِهِ الصَّنَاعَاتِ مُتَوَكِّلًا عَلَى كَافِي الْمُهِمَّاتِ فَاسْتَمِعْ

ددي صناعاتو چه توكل كونكي يم په قدرِ كفايي ذكر كولو ددي مهماتو پس واوره.

(١) قوله "يَنْبَغِيْ ان يَعْلَمَ الخ" دحجت داصول صلوري بيانولو نه وروسته اوس مؤلف ددي مادي احوال بيانوي اودمتاخرينو نه شكايت كوي چه دي حضراتو دقياس صوري په مباحثو كښي ډير اورد بحث كړي دي او ډير خامي ېي كړي دي اويه مباحث ماده كښي صرف صناعت خمسه باندي اكتفاء كړي ده بلكه ځنو دپينځو نه هم ذكركړي دي حالانكه دتولو نه زيات دماده مباحث ډير ضروري وو ځكه چه دمنطق نه چه كوم مقصد دي هغه خطاء في الفكرنه حفاظت دي او چه كله هم هغه حاصل كيدي شي كله چه دمطلوب مناسب دمادي تلاش وكړي شي او داسي قياس جوړ كړي شي كوم چه مطلوب ته رسول اودخطاء صورت كښي قياس هم وي مكر په كم اوماده كښي هم خطا واقع كيږي مكر اكثر اوزيات منطقيانو ته پكاردي چه دقياس دماده معلومولو ډير خيال اوفكر وكړي.

(٢) قوله الاقسيه، دقضايا ذات طرف ته خيال كول نې ددي نه قطع نظر اوكړي شي چه دغه قضايا دكوم مخصوص خبري نه مركب دي. لطالبي الصناعة، ددي دپاره چه دمنطق مقصد دخطاء نه مذكر كښي دذهن حفاظت كول دي.

اَنَّ الْقِيَاسَ بِاِعْتِبَارِ الْمَادَّةِ يُنْقَسَمُ اِلٰي اَقْسَامٍ (١) خَمْسَةٍ وَيُقَالُ

چه قياس په اعتبار دمادي سره پنځه اقساموته شا مليږي او ديته صناعت ويل كيږي

لَهَا الصِّنَاعَاتُ الْخَمْسَةُ اَحَدُهَا الْبُرْهَانِيُّ وَالثَّانِيُ الْجَدَلِيُّ وَالثَّالِثُ

دیته صناعات خمسه او برهان هم او دویم جدلي دي او دريم

الْخَطَابِيُّ وَالرَّابِعُ الشِّعْرِيُّ وَالْخَامِسُ السَّفِسْطِيُّ. **فصل في**

خطابي څلورم شعري پنځم سفسطي. فصل دي په

**البرهان**(۲) **وما يتعلق به** :اِعْلَمْ اَنَّ الْبُرْهَانَ قِيَاسٌ

بیان دبرهان کښې او ددې دمتعلقاتو په بیان کښې پوهه شه چه برهان قیاس دې چه

مُؤَلَّفٌ مِنَ الْيَقِيْنِيَّاتِ (۳) بَدِيْهِيَّةً كَانَتْ اَوْ نَظَرِيَّةً مُنْتَهِيَةً

دیقینیا تونه جوړ شوي دي برابر خبره ده كه بدیهي وي یانظري دواړو نه رسیږي

اِلَيْهَا وَلَيْسَ الْاَمْرُ كَمَا زَعَمَ اَنَّ الْبُرْهَانَ اِنَّمَا يَتَاَلَّفُ مِنَ

او معامله داسې نه ده لکه څنگه چه گمان شوي دي چه دا صرف دبدیهیاتو نه مرکب

الْبَدِيْهِيَّاتِ فَحَسْبُ ثُمَّ الْبَدِيْهِيَّاتُ سِتَّةٌ اَحَدُهَا الْاَوَّلِيَّاتُ هِيَ

شوي دي او بدیهیات شپږ دي اول او لیات دي او دا هغه قضیه ده

قَضَايَا يَجْزِمُ الْعَقْلُ فِيْهَا بِمُجَرَّدِ الْاِلْتِفَاتِ وَالتَّصَوُّرِلَا يَحْتَاجُ

او دا هغه قضیه ده چه عقل پکښې یقیني وي لکه صرف په التفات او تصور سره

اِلَي وَاسِطَةٍ كَقَوْلِكَ الْكُلُّ اَعْظَمُ مِنَ الْجُزْءِ وَثَانِيْهَا الْفِطْرِيَّاتُ

او واسطې ته احتیاج نه وي لکه ستا دا قول کل دجزنه اعظم دي دویم قسم فطریات

وَهِيَ مَا يَفْتَقِرُ اِلَي وَاسِطَةٍ غَيْرُ غَائِبَةٍ عَنِ الذِّهْنِ اَصْلًا وَيُقَالُ

دي دا هغه دي کوم چه واسطه ته محتاج وي او دذهن نه غائب نه وي او دې قضې ته

لِهٰذِهِ الْقَضَايَا قِيَاسَاتُهَا مَعَهَا نَحْوُ الْأَرْبَعَةُ زَوْجٌ فَإِنَّ مَنْ تَصَوَّرَ

قياسات وبل كبري لكه اربعه زوج دى يعني څلور جفت دي ځكه چه دڅلورو

مَفْهُوْمَ الْأَرْبَعَةِ وَتَصَوَّرَ مَفْهُوْمَ الزَّوْجِ بِأَنَّهٗ هُوَ الَّذِيْ يَنْقَسِمُ

(مفهوم) نه جفت مقصود دي ځكه چه دا هغه مفهوم دي كوم چه ددي دتصور نه

بِمُتَسَاوِيَيْنِ حَكَمَ بَدَاهَةً بِأَنَّ الْأَرْبَعَةَ زَوْجٌ وَنَحْوُ قَوْلِنَا الْوَاحِدُ

تقسيميږي په ښكاره سره دا څلور جفت دي او يا دا قول يو

نِصْفُ الْإِثْنَيْنِ فَإِنَّ الْعَقْلَ يَحْكُمُ بِهٖ بَعْدَ أَنْ يُلَاحِظَ مَفْهُوْمَ

د دوه نيم دي ځكه چه عقل په دي حكم كوي وروسته ددي نه چه د دوه مفهوم

نِصْفِ الْإِثْنَيْنِ وَالْوَاحِدِ وَثَالِثُهَا الْحَدْسِيَّاتُ (٤) وَهِيَ ظُهُوْرُ

نه وكتل شي، نيم ددوو او واحد او دريم حدسيات دي او دا ظهور

الْمَبَادِيْ دَفْعَةً وَاحِدَةً مِنْ دُوْنِ أَنْ يَكُوْنَ هُنَاكَ حَرَكَةٌ فِكْرِيَّةٌ

دمبادياتو دي په يو ځل بغير ددينه چه هلته حركت وكړي شي حركت فكريه

(٥) وَالْفَرْقُ بَيْنَ الْحَدْسِ وَالْفِكْرِ إِنَّهٗ لَا بُدَّ فِي الْفِكْرِ

او فرق په مابيَن دحدس او فكر كښې دادي چه په فكر كښې

مِنَ الْحَرَكَتَيْنِ لِلنَّفْسِ بِخِلَافِ الْحَدْسِ فَإِنَّ الذِّهْنَ

د دوه حركتونو نه لابدي ده دنفس دپاره په خلاف دحدس ځكه چه ذهن

بَعْدَ مَا حَصَلَ لَهُ الْمَطْلُوْبُ بِوَجْهٍ مَّا يَتَحَرَّكُ فِي الْمَعَانِي .

وروسته دحصول فكر نه مطلوب حاصلوي پداسي شان چه حركت كوي په معاني كښې

**(۱) قوله"اقسام خمسه"** دپنځو وجه دحصرد او چه دقياس دمقدماتو دوه صورتونه دي يو هغه چه مفيد للتديق دي دويم هغه چه مفيد للتخيل وي

که دوېم صورت وي هغه قياس شعري دي او که اولنی صورت وي نو دهغي دوه صورتونه دي، اول مفيد للظن. دوېم معيد ديقين وي اول ته قياس خطاس ويل کيږي او دوېم صورت دادي چه جزء يقيني حاصل وي نو هغه قياس برهان دي اوکه جزء يقيني نه وي مگر عام طور سره تسميه کړي وو ياکم ازکم دفريق مقابل په نزد مسلم وو نو هغه جدل دي اوکه داسې هم نه وو مغالطه ده.

(۲)قوله " البرهان" په صناعات خمسه کښې چونکه دټولو نه اوچت برهان دي ددي وجه نه يې ددي ذکر مقدم کړو.

(۳)قوله"اليقنيات" يقين هغه قطعي تصديق ته ويل کيږي کوم چه دوقع مطابق وي او په نفس الامر کښې ثابت وي داديقين تعريف دي دتصديق قيد سره ټول تصورات مثلا شك وهم تخيل ټول او وتل اودقطعي قيد سره ظن (گمان) اووتلو اودمطابق قيد سره جهل مرکب اووتلو او ثبوت في نفس الامر قيد سره تقليد اخراج اوکړو.

(٤)قوله " الحدسيات" دمبادي نه مطالبو طرف نه دذهن په تيزي سره تللو ته حدس ويل کيږي.

(٥)قوله " والفرق بَيْنَ الحدس" اول پدي پوهه شه چه فکر دحرکتونو مجموعي نوم دي يو دمطالب نه دمبادي طرف ته او دوېم دمبادي نه دمطالبه طرف ته او که فَقَطْ اولني حرکتونو ته فکر ويل کيږي او کله دمطلوب حاصلولو دپاره ديوځو نورو معلوماتو تَرْتِيْب کولو سره فکر ويل کيږي ددي نه روسته پدي پوهه شه چه مؤلف کوم فکر او حدس بيان کړي دي حدس يې دفکر مقَابِل بيان کړي دي او دا مقابله صرف دفکر داولي معني په حيثيت سره ده که چرې نظريات دبديهيات طرف ته منتهي

نه وي نو دور او تسلسل به لازم راشي او دا دمنطقيانو خيال دي.
الحدس به حدس نه فكر وي او نه حركت.

الْمَخْزُوْنَةِ وَالْمَبَادِي الْمَكْنُوْنَةِ طَالِبًا لِمَا يَكُوْنُ لَهَا تَنَاسُبٌ

دا هغه دي چه به معنى كسبي شركت وكړي شي او به جبو شوو معناګانو كسي حركت

بِالْمَطْلُوْبِ حَتّٰى يَجِدَ مَعْلُوْمَاتٍ مُنَاسِبَةً لَهٗ

وكړي دې ره دهغه چه مناسب وو طالب دباره دمطلوب سره، ترڅو پيدا كړي مناسب معلومات نه

وَهٰهُنَا تَمَّ الْحَرَكَةُ الْاُوْلٰى ثُمَّ يَرْجِعُ فَهْقَرِي وَيَتَحَرَّكُ ثَانِيًا

ورسيري ترڅو خابه اولنۍ حركت ختم شو بيا ذهن واپس شو او دوباره به ترتيب سره

فَمَجْمُوْعُ هَاتَيْنِ الْحَرَكَتَيْنِ يُسَمّٰى بِالْفِكْرِ مَثَلًا اِذَا كُنْتَ تَصَوَّرْتَ الْاِنْسَانَ

بس مجموعي ددې دوه حركتونو ته فكر وائي مثلا كله چه تا دانسان تصور اوكړو

بِوَجْهٍ مِنَ الْوُجُوْهِ كَالْكَاتِبِ وَالضَّاحِكِ مَثَلًا ثُمَّ صِرْتَ طَالِبًا

په يو وجه دوو وجو هو سره لكه كاتب او ضاحك او بيا تا دانسان ماهيت ته نظر اوكړو

لِمَاهِيَّةِ الْاِنْسَانِ فَحَرَّكْتَ ذِهْنَكَ نَحْوَ الْمَعَانِي(۱) الَّتِي عِنْدَكَ

او ذهن ته دي حركت وركړو به طرف دهغه معناګانو كوم چه ستا ذهن كښي بتي

مَخْزُوْنَةٌ فَوَجَدْتَ الْحَيَوَانَ وَالنَّاطِقَ مُنَاسِبًا لِمَطْلُوْبِكَ فَتَمَّ الْحَرَكَةُ

پرتې وي نو نه حيوان ناطق اومندلو او ستا دمطلوب مناسب دي اولنۍ حركت تمام شو

الْاُوْلٰى وَمَبْدَاهُ (۲) الْمَطْلُوْبُ الْمَعْلُوْمُ مِنْ وَجْهٍ وَمُنْتَهَاهُ الْحَيَوَانُ

او ددې مبدا معلومه مطلوبه ده په يو وجه سره او انتهائي حيوان

وَالنَّاطِقُ ثُمَّ تَرْتِيْبُ الْحَيَوَانِ وَالنَّاطِقِ بِاَنْ تَقَدُّمُ الْحَيَوَانِ الَّذِيْ هُوَ

او ناطق دي بيادې حيوان او ناطق ته ترتيب اوكړو دا چه اول تقديم كړو هغه چه هغه

الْجِنْس عَلَى النَّاطِقِ الَّذِيْ هُوَ الْفَصْلُ اَوْ قُلْتَ الْحَيْوَانِ النَّاطِقِ

دحیوان جنس دي هغه کوم چه فصل دي او یا تا اوونیل حیوان ناطق

وَهٰهُنَا اِنْقَطَعَ الْحَرَكَةُ الثَّانِيَةُ وَحَصَلَ الْمَطْلُوبُ وَاَمَّا الْحَدَس

او دلته دویم حرکت قطع شو او تاته مطلوب حاصل شو اما حدس چه دي

فَفِيْهِ اِنْتِقَالُ الذِّهْنِ مِنَ الْمَطْلُوْبِ اِلَى الْمَبَادِيْ دَفْعَةً

په دي کښي انتقال دذهن دي دمطلوب نه مبادي ته اویو کل انتقال دذهن دي مطلوب

وَمِنْهَا اِلَى الْمَطْلُوْبِ كَذٰلِكَ وَاَكْثَرَ مَا يَكُوْنُ الْحَدَس عَقِيْبَ

ته او دا حد اکثرد شوق نه وروسته وي او سړي وائي نه

الشَّوْقِ وَالتَّعَبِ وَقَدْ يَكُوْنُ بِدُوْنِهِمَا وَالنَّاس مُخْتَلِفُوْنَ

او کله کله بغیر دشوق نه وي او خلق په حد کښي مختلف دي

فِي الْحَدَسِ فَمِنْهُمْ مَنْ قَوِيَ الْحَدَسَ كَثِيْرَةً يَحْصُلُ لَهُ مِنَ

خني دادي چه حدس ډير دي چه دیته دمطالبو نه حاصلیږي دحادسو نه لکه هغه

الْمَطَالِبِ اَكْثَرَهَا بِالْحَدَسِ كَالْمُؤَيَّدِ بِالْقُوَّةِ الْقُدْسِيَّةِ كَالْحُكَمَاءِ

شخص چه په قوت قدسیه سره دهغه تائید شوي وي لکه خني حکماء

وَالْاَوْلِيَاءِ وَالْاَنْبِيَاءِ وَمِنْهُمْ مَنْ هُوَ قَلِيْلُ الْحَدَسِ ضَعِيْفَةٌ

او اولیاء او انبیاء او خني قلیل الحدس دي او ضعیف الحدس دي

(۳)وَمِنْهُمْ مَنْ لَا حَدَسَ لَهُ كَالْمُنْتَهِيْ فِي الْبَلَادَةِ وَمِنْ هٰذَا يُعْلَمُ

او خني بالکل بي حدس دي لکه انتهاء او ددغه نه دا معلومیږي چه

اَنَّ الْبَدَاهَةَ اَوِ النَّظَرِيَّةَ مُخْتَلِفَانِ بِالْاَشْخَاصِ وَالْاَوْقَاتِ

بداهت او نقل يې په اشخاصو. پوري مختلف دي او په اوقاتو پوري

فَرُبَّ حَدَسِيٌّ عِنْدَ فَاقِدِةِ الْقُوَّةِ الْقُدْسِيَّةِ يَكُوْنُ نَظَرِيًّا وَبَدِيْهِيًّا

حدسي دي په وخت دفاقد القوة القدسيه سره دانظري او بديهي كيري

عِنْدَ صَاحِبِهَا، وَرَابِعُهَا الْمُشَاهَدَاتُ وَ هِيَ قَضَايَا يُحْكَمُ فِيْهَا

دخپل صاحب په نزد او څلور قسم مشاهدات دي او دا هغه قضايا دي چه په شواهدو

بِوَاسِطَةِ الْمُشَاهَدَةِ وَالْاِحْسَاسِ وَهِيَ تَنْقَسِمُ اِلٰي قِسْمَيْنِ الْاَوَّلُ مَا

او واسطو سره پدي حكم كيري او احساس سره او دا په دوه تقسيميږي اولني هغه چه

شُوْهِدَ بِاِحْدٰي الْحَوَاسِ الظَّاهِرَةِ.

په يو دخواص ظاهري سره حاصل شوي وي.

(١)قوله " الْمَعَانِيْ الَّتِيْ عِنْدَكَ: لكه جوهر او جسم مطلق اونـامي حيـوان او ناطق وغيره تاسي خپل ذهن ته ددي معناګانو طرف ته حركت وركـول دي پس دا اول حركت وي دقياس حدسي دپاره.

(٢)قوله " مبداه" يعني داول حركت مبدا هغه مطلوب معلوم بوجه مـادي او ددي انتهي مناسب دي دهغه مطلوب دپاره كوم چه ذهن په هغـه معـاني فخرونه كنبني خوبن كړي دي لكه حيوان ناطق په مذكور مثال كنبني.

(٣)قوله " ضعيفه" ضعيف الحدس اوياهغه بي وقوف ته ويل كيـري كـوم حدس مطلق نه وي او اس انتهاء درجه والا كم عقل ته ويل كيري.

وَهِيَ خَمْسٌ(١) اَلْبَاصِرَةُ وَالسَّامِعَةُ وَالشَّامَّةُ وَالذَّائِقَةُ وَاللَّامِسَةُ

او دا پنځـــه دي ، بـــاصره، ســـامعه، شـــامه، ذائقـــه، لامـــه،

وَيُسَمّٰي هٰذَا الْقِسْمُ بِالْحِسِّيَات وَالثَّانِيْ مَا اُدْرِكَ بِالْمُدْرَكَاتِ

او دا په حسياتو مسمي شوي دي او دريم هغه دي چه په مدركاتو سره بي ادراك كيږي ،

مِنَ الْحَوَاسِ الْبَاطِنَةِ الَّتِيْ(٢) هِيَ اَيْضًا خَمْسٌ ، اَلْحِسُّ الْمُشْتَرَكُ

حواس باطني هم همدارنگه پنځه دي اول حس مشترك مدرك صورت دي ،

لِلصُّوَرِ وَالْخَيَالِ الْاِلٰهِيْ هِيَ خَزَانَةٌ لَهٗ وَالْوَهْمُ مُدْرِكٌ لِلْمَعَانِيْ

دويم خيال هغه چه دده دپاره خزانه دي، دريم وهم چه دمعناګانو دپاره مدرك وي

الشَّخْصِيَّةِ وَالْجُزْئِيَّةِ وَالْحَافِظَةِ الَّتِيْ هِيَ خَزَانَةٌ لِلْمَعَانِي الْجُزْئِيَّةِ

دشخصي جزئيت او حافظه دا هغه ده کوم چه د جزئيه معناګانو خزانه ده

وَالْمُتَصَرِّفَةُ الَّتِيْ تَتَصَرَّفُ فِي الصُّوَرِ وَالْمَعَانِيْ بِالتَّحْلِيْلِ

او هغه متصرفه کوم چه په صورتونو کښي تصرف کوي اوپه معاني کښي ترکيبي

وَالتَّرْكِيْبِ وَيُسَمّٰي هٰذَا الْقِسْمُ بِالْوِجْدَانِيَاتِ وَمُدْرَكَاتِ الْعَقْلِ

تصرف کوي او دا په وجدانياتو هم مسمي کيږي اوپه مدرکات عقليه سره هم

الصِّرْفِ اَعْنِي الْكُلِّيَاتِ غَيْرُ مُنْدَرِجٍ فِيْ هٰذَا الْقِسْمِ مِثَالُ الْقِسْمُ

يعني کليات په دي قسم کښي مثال د دويم قسم دي

الثَّانِيْ كَمَا حَكَمْنَا بِاَنَّ لَنَا جُوْعًا اَوْ عَطْشًا وَخَامِسُهَا التَّجْرِبِيَاتِ

لکه څنګه چه مونږ حکم اوکړو چه زمونږ لوږه ده او تنده ده پنځم تجربيات دي

وَهِيَ الَّتِيْ قَضَايَا يَحْكُمُ الْعَقْلُ بِهَا بِوَاسِطَةِ تَكْرَارِ الْمُشَاهَدَةِ

او دا هغه قضيه ده په کومو کښي چه دعقل يو واسطه حکم شوي وي په واسطه

وَعَدَمُ التَّخَلُّفِ حكمًا كُلِّيًّا كَالْحُكْمِ فِيْ بَابِ شُرْبِ السَّقْمُوْنِيَا

دتکرار مشاهداتو او دکليه دحکم عدم تخلف لکه دسقمونيا څکل

مسْهِلٌ لِلصَّفْرَاءِ، وَسَادِسُهَا الْمُتَوَاتِرَاتُ(٣) وَهِيَ قَضَايَا يَحْكُمُ بِهَا

دصفرا دصفراء دپاره، شپږم متواترات او دا هغه قضيه ده چه په دي کښي ديوجماعت

بِوَاسِطَةِ اَخْبَارِ جَمَاعَةٍ يَسْتَحِيْلُ الْعَقْلُ تَوَاطُؤُهُمْ عَلَي الْكَذِبِ

داخبارو بواسطه حکم شوي وي چه عقل ددي په دروغو دا جمع كيدل محال گنړي

وَاخْتَلَفُوْا فِيْ اَقَلِّ عَدَدَ هٰذِهِ الْجَمَاعَةِ قِيْلَ اِنَّ اَقَلَّهُ اَرْبَعَةٌ

اودجماعت په کمترين عدد کښي علماء اختلاف کړي دي څنو ويلي دي چه دا څلور

وَقِيْلَ عَشَرَةٌ وَقِيْلَ اَرْبَعُوْنَ وَالْاَشْبَهُ اِنَّ هٰذَا

دي او بعضو وئيلي دي چه لس دي او بعضو وئيلي دي چه څلويښت دي او حق خبره

الْعَدَدُ يَخْتَلِفُ بِاِخْتِلَافِ حَالِ الَّذِيْنَ اَخْبَرُوْهُ

داده چه دغه عدد په اختلاف دحال دهغه کسانو کښي دي چه خبرئې ورکړي دي

وَاخْتِلَافُ الْوَاقِعَةِ فَلَا يَتَعَيَّنُ عَدَدُ الضَّابِطَةِ اَنْ

مختلف کيږي او په اعتبار داختلاف د واقعي سره او عدد دضابطي نه متعين کيږي

يَبْلُغَ اِلٰي حَدٍّ يُفِيْدُ الْيَقِيْنَ فَهٰذِهِ السِّتَّةُ هِيَ مَبَادِي الْبَرَاهِيْنِ

حه هغه حد ته ورسيږي چه يقيني مفيد كړي او دا شپږ دي او دا د دليل مبادي دي

وَمَقَاطِعُ الدَّلِيْلِ وَمُنْتَهِي الْيَقِيْنِ **.فائدة:** زَعَمَ قَوْمٌ

او مقاطع د دليل چه منتهي د يقين دي. **فائده:** يو قوم داسي خيال کړي دي چه

اَنَّ الْمُقَدِّمَاتُ النَّقْلِيَّةِ لَا تُسْتَعْمَلُ فِي الْقِيَاسِ الْبُرْهَانِيْ ظَنًّا مِنْهُمْ

مقدمات نقليه په قياس کښي نه استعماليږي دا ددوي گمان دي چه

اَنَّ النَّقْلَ يُتَطَرَّقُ اِلَيْهِ الْغَلَطُ وَالْخَطَاءُ مِنْ وُجُوْهٍ شَتّٰي

دنقل طرف ته غلط او خطا په څو وجو سره نقل شي نو پدي وجه به دا

فَكَيْفَ يَكُوْنُ مَبَادِيْ.

څرنګه مبادي وګرځي؟

(۱)قوله "وَهِيَ خمس" یعني ظاهري حدس پنځه دي، اول الباصرة یعني لیدونکي قوت کوم چه د دوه مجوف عصباتو ترمنځ کیښودل شوي دي کوم چه یو ځاي کیږي او جدا کیږي او سترګو ته ربږي،دویم السامعة اوریدلو والاقوت کوم چه په هغه پټو کښې اچول شوي دي کوم چه دغوږ په سورو کښې خواره دي ددي په ذریعه سره اوازونه اوریدل کیږي، ځلورم الشامة یعني دبوي کولو والاته کوم چه دغوښې په دوه ټولو کښې کیښودل شوي دي لکه دتیونو دځوکو پشان د دماغ په مخکني حصه کښې کیښودل شوي دي ددي قوت په واسطه سره بنه اوبد بویونه بوي کیږي، ځلورم ذائقه یعني دڅکلو والا قوت کوم دژبې په ځکې کښې خپور دي ددي په واسطه سره خوندونه تروشي او خوږ دغیره خوندونه معلومیږي، پینځم الامسه دا هغه قوت دي کوم چه په ټول جسم کښې مَوْجُوْدٌ دي چه ددي په واسطه سره یخ او ګرم وغیره لکه سخت او نرم معلوموي، شپږم.

(۲)قوله "الَّتِيْ هِيَ اَيْضًا خمس" یعني دظاهري حواسو پشان باطني هم پنځه دي کوم چه د دماغو په تجویفاتو کښې په تَرْتِيْب سره کیښودل شوي دي دفلسفه په کتابونو کښې په تفصیل سره ذکر شوي دي، اول الحس المشترك دا هغه قوت دي په کوم کښې چه دجزئیاتو محسوسه صورتونه بالتَّرْتِيْب صورتونه منقش وي، دویم والخیال، دا هغه قوت دي چه دا صورتونه محفوظ ساتي کوم چه په حس مشترك کښې تقسیم شوي دي محل صورت کښې دمادي دغائب کیدو نه وروسته کله اوغواړي دصورت استحضار وکړي لِهٰذَا قوت خیال دحس مشترك خزانه وي، دریم والوهم، دا هغه قوت دي کوم چه دهغه معاني جزئیات اوشخصیه ادراك کوي کوم چه محسوساته پوري معلق وي لکه محبت او عدالت، ځلورم والحافظه دا هغه قوت دي

كوم چه دوهم مدركات خزانه دي او ددي مدركات محفوظ ساتي، يبنخم والمتفرقه، دا هغه قوت دي كوم چه كار چه تركيب الصورت او تركيب الْمَعَانِيْ وي او كوم چه صورت او معني ګانو ته تفصيل وركوي كوم چه معاني استعمالوي هغي ته قوت عقل ويل كيږي او كله چه دا دوهم قوت استعمالوي نو ديته متخيله ويل كيږي وتفصيل هٰذَاالْمَبَاحِث يطلب من كتاب الشفاء.

(٣)قوله " وسادسها المتواترات" يعني دبديهاتو شپږم قسم متواتر دي متواترات هغه قضايا دي دكوم چه مجزيه ممكن الوقوع وي او ددي دوقوع خبر داول نه تراخره پوري دومره انسانانو ته رسيدلي وي چه ددي انسان په كذب باندي متفق كيدل عادم محال وي.

**فائده:** تواتر په محسوساتو كښي مفيد للميقين وي او په عقليه كښي نه وي.

الْقِيَاسِ الْبُرْهَانِي الَّذِيْ يُفِيْدُ (١) الْقَطْعَ وَاِنَّ هٰذَا(٢) الظَّنُ اِثْمٌ لِاَنَّ

قياس برهاني دپاره وي كوم چه فايده ديقين كوي او بيشكه دا ګمان ګناه دي خكه

النَّقْلَ كَثِيْرًا مَّا يُفِيْدُ الْقَطْعَ اِذَا رُوْعِيَ فِيْهِ شَرَائِطٌ وَانْضَمَّ اِلَيْهِ

دير نقل فائده ديقين كوي كله چه پدي كښي دشرائطو لحاظ ساتل شوي وي او عقل

الْعَقْلُ نَعَمْ لَوْ قِيْلَ اَنَّ النَّقْلَ الصَّرْفِ بِاِعْتِبَارِ اِنْضِمَامِ الْعَقْلِ مَعَهٗ

ورسره يوخاي شوي وي او بعضو ونيلي دي چه يواځي نقل دعقل سره انقسام ته اعتبار

لَا يَعْتَبَرُ وَلَا يُفِيْدُ لَكَانَ لَهٗ وَجْهٌ. **فصل** : اَلْبُرْهَانُ

نشته او نه معتبريږي او نه فايده وركوي او كه كوي هغي دپاره په وجه وي. فصل: برهان

قِسْمَانِ لميٌّ(٣) وانيٌّ اِمَّا اللِّمِيُّ فَهُوَ الَّذِيْ يَكُوْنُ الْاَوْسَطُ فِيْهِ

چه دوه قسم دي يولمي اوبل اني دي لمي هغه دي چه دي په معني كښي اوسط علت

عِلَّةٌ لِثُبُوْتِ الْاَكْبَرِ لِلْاَصْغَرِ فِي الْوَاقِعِ(٤) كَمَا اِنَّهُ وَاسِطَةٌ

وي دپاره دثبوت داكبر داصغر دپاره په حقيقت كښي لكه څنګه چه دا به حكم كښي

فِي الْحُكْمِ يُسَمّٰى بِهِ لِاِفَادَةِ اللِّمِيَّةِ وَالْعِلِيَّةِ وَاَمَّا الْاِنِّيْ (٥) فَهُوَالَّذِيْ

واسطه دي وجه دتسميه داده چه دا دلم او علت فائده وركوي اواني هغه دي

يَكُوْنُ الْاَوْسَطُ فِيْهِ عِلَّةُ الْحُكْمِ فِي الذِّهْنِ فَقَطْ وَلَمْ يَكُنْ

چه پدي كښي حد اوسط صرف علت حكم صرف په ذهن كښي وي او حقيقت كښي

عِلَّةً فِي الْوَاقِعِ بَلْ قَدْ يَكُوْنُ مَعْلُوْلًا لَهُ مِثَالُ اللِّمِيْ قَوْلُكَ زَيْدٌ

علت نه وي بلكه كله معلول وي لكه څنګه چه اوسط قياس كښي دزيد دپاره

مَحْمُوْمٌ لِاَنَّهُ مُتَعَفِّنُ الْاَخْلَاطِ وَكُلُّ مَحْمُوْمٍ مُتَعَفِّنُ الْاَخْلَاطِ مَحْمُوْمٌ

ثبوت دتبي په ذهن كښي څكه چه دا تعفن داخلاطو دي او هر متعفن داخلاطو محموم

فَزَيْدٌ مَحْمُوْمٌ فكَمَا اَنَّ فِيْ هٰذَا الْقِيَاسِ الْاَوْسَطِ عِلَّةٌ لِثُبُوْتِ الْحُمّٰي

وي نوزيد محموم دي لكه څنګه چه پدي قياس كښي علت دپاره دثبوت دحمي دزيد

لِزَيْدٍ فِيْ ذِهْنِكَ كَذٰلِكَ هُوَ عِلَّةٌ لِوُجُوْدِ الْحُمّٰي فِي الْوَاقِعِ

دپاره ستا په زهن كښي همدارنګه دا علت دي دپاره دوجو دحمي په حقيقت كښي

وَمِثَالُ الْاِنِّيْ زَيْدٌ مُتَعَفِّنُ الْاَخْلَاطِ لِاَنَّهُ محموم لِاَنَّهُ مَحْمُوْمٌ وَكُلُّ

او مثال داني دا قول ستا دي زيد متعفن الاخلاط څكه دي محموم دي او هر

مَحْمُوْمٍ مُتَعَفِّنُ الْاَخْلَاطِ فَزَيْدٌ مُتَعَفِّنُ الْاَخْلَاطِ فَوُجُوْدِ الْحُمّٰي

محموم متعفن الاخلاط وي نو زيد متعفن الاخلاط دي نو وجود دحمي

| عِلَّةٌ | لِثُبُوْتِ | كَوْنِهِ | مُتَعَفِّنُ | الْاَخْلَاطِ | فِيْ | ذِهْنِكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| علت | دپاره دثبوت | ـي څکه چه دي | متعفن | اخلاط دي | په | ستا ذهن کښي |

| وَلَيْسَ عِلَّةً فِيْ نَفْسِ الْاَمْرِبَلْ عَسْي. |
|---|
| او په نفس الامر کښي نه دي بلکه دېر کرته . |

(۱)قوله '' يفيد القطع'' يعني په قرائن شاهده اومتواتر تدل عَلَي انتقاء الاحتمالات وحجر داحتمال العارض العقل لاينافي القطع كَمَاان احتمال الحجاز لايتافي القطع في كون اللفظ حقيقة.

(۲)قوله " في الواقع، يعني فِي الْخَارِجِ كښي هو كَذٰلِكَ فِي الذِّهْنِ ،يعني په خارج هم همدي شان وي.

(۳)قوله " وان هٰذَاالظن اثم تليمح الي قول عزوجل ان بعض الظن اثم وانت تعلم ان الظن لايغني من الحق شيئا.

(٤) قوله"لمي كوم چه لم نه منسوب دي كوم چه دتحقيقاتو او اثبات په معني كښي دي مثلا لم فعلت هٰذَااي ما علة فعلك هذا.

(٥)قوله ''اني'' كوم چه ان ته منسوب دي اود تحقيق او اثبات په معني دي، دي برهان ته اني په دي وجه وائي چه دانبوت الحكم فِي الذِّهْنِ والنهو دپاره مفيد دي او ثبوت الْعِلْمِ فِي الْخَارِجِ دپاره مفيد ندي الحاصل برهان په دوه قسمونه دي، اول لمي، دويم اني لمي هغه برهان ته ويل كيږي په كوم كښي دعلت نه معلولپه طرف دلمي راوړي كوميو حكم ته دهغي دعلامت نه ثابتول لكه په څمكه نمر راځي اودهر نمر نه رنړا راځي پس څمكه رنړا ده نو دلته پدي مثال كښي دكوم نمر نه رنړا وركوونكي دځمكي درنړا وركولو علم دي همدغه شان په واقع كښي همدغه نمر لرونكي درنړا

کیدو علت دي ځکه دنمر دوجي نه رنړا وي درنړا دوجي نه نمر نه وي ي
ددي بَلْ مثال العالم وکل ممکن دموجد فَالْعَالَمْ دمَوْجُوْدُ امن هغه برهان ته
ویل کیږي په کوم کښې دمعلول نه په علت دليل راوړي يعني دکوم حکم
دعلت واقعه نه ثابت کول دي لکه چه داسي اووائي چه زمکه رنړا ده او
هر رنړا ته نمر راتلونکي وي پس په ځمکه نمر راتلونکي دي پس پدي
مثال کښې دزمکي دنړا نه دنمر دوجود علم شو او داپه حقيقت کښې دنمر
دلړيدونه علت رنړا نده بلکه نمر عکس دي.

ان يَّكُوْنَ الْاَمْرُ فِي الْوَاقِعِ بِالْعَكْسِ **فصل** : اَلْقِيَاسُ (۱)

په حقيقت کښې برعکس دي. فصل: قياس جدلي هغه قياس دي

الْجَدَلِيْ قِيَاسٌ مُرَكَّبٌ مِنْ مُقَدَّمَاتٍ مَشْهُوْرَةٍ اَوْ مُسَلَّمَةٍ عِنْدَ

کوم چه دمشهورو او مسلمه مقدماتو نه مؤلف وي اود خصم په نزد مسلم وي

الْخَصْمِ صَادِقَةً كَانَتْ اَوْ كَاذِبَةً وَالْاَوَّلُ مَا تُطَابِقُ فِيْهِ اٰرَاءَ قَوْمٍ

مرکب شوي وي اول هغه دي چه مطابق شوي وي پدي کښې اراء دقوم

اَمَّا الْمَصْلَحَةُ عَامَّةٌ نَحْوَ اَلْعَدْلُ حَسَنٌ وَالظُّلْمُ قَبِيْحٌ وَقَتْلُ

او هر چه مصلحت دي عام دي مثلا عدل ښه شي دي او ظلم بد شي دي او وژل

السَّارِقِ وَاجِبٌ اَوْ لِرِقَّةٍ قَلْبِيَّةٍ كَقَوْلِ اَهْلِ الْهِنْدِ ذَبْحُ الْحَيْوَانِ

دغل واجب دي اويا دزړه دنرم والي په وجه وي لکه داهل هندد قول ځناور حلالول

مَذْمُوْمٌ اَوْ اِنْفِعَالَاتٍ خَلْقِيَّةٍ اَوْ مِزَاجِيَّةٍ فَاِنَّ لِلْاَمْزِجَةِ وَالْعَادَاتِ

بده خبره ده يا تا ثرات امتزاجي خلقيه ځکه چه دمزاجونو اوعاداتو

دَخلًا عَظِيْمًا فِي الْاِعْتِقَادِيَاتِ فَاَصْحَابُ الْاَمْزِجَةِ الشَّدِيْدَةِ

لوي دخل وي پدي کښي په اعتقاداتو کښي لکه دبدمزاج والا شريسند خلقو نه

يَرَوْنَ الْاِنْتِقَامَ مِنْ اَهْلِ الشَّرَارَةِ حَسَنًا وَاَصْحَابُ الْاَمْزِجَةِ اللَّيِّنَةِ

دبدل اخستل دانيك دي او نرم طبعيته خلق عفوه

يَرَوْنَ الْعَفْوَ خَيْرًا وَلِذٰلِكَ تَرَي النَّاسَ مُخْتَلِفِيْنَ فِي الْعَادَاتِ

خوښوي او اودا خيرګڼي نو ددي وجه داده چه خلق مختلف الطبع دي

وَالرُّسُوْمِ وَلِكُلِّ قَوْمٍ مَشْهُوْرَاتٌ خَاصَّةٌ بِهِمْ وَكَذٰلِكَ كُلُّ صَنَاعَةٍ

او رواجونو کښي او دهر قوم مشهوره خواص وي همدارنګه مشهوره صناعات دي

فَمِنْ مَشْهُوْرَاتِ النَّحْوِيِّيْنَ اَلْفَاعِلُ مَرْفُوْعٌ وَالْمَفْعُوْلُ مَنْصُوْبٌ

پکښي لکه دنحويانو په نزد هرفاعل مرفوع دي او هر مفعول منصوب

وَالْمُضَافُ اِلَيْهِ مَجْرُوْرٌ وَمِنْ مَشْهُوْرَاتِ الْاُصُوْلِيِّيْنَ الْاَمْرُ

او مضاف اليه مجرور دي دا مشهوره اقوال داصولينو دي

لِلْوُجُوْبِ وَالثَّانِيْ مَا يُؤَلَّفُ مِنَ الْمُسَلَّمَاتِ بَيْنَ الْمُتَخَاصِمِيْنَ

دويم هغه مسلمه قضيه ګاني دي کوم چه د دواړو فريقو په نزدمسلمه وي چه دفريقينو

وَلِلْمَشْهُوْرَاتِ شِبْهٌ بِالْاَوَّلِيَاتِ وَتَجْرِيْدُ الذِّهْنِ

په نزد مشهور او مسلم دي او مشهوره قضي داوليات سره مشابهت لري او دخالي ذهن

وَتَدْقِيْقُ النَّظَرِ يُفَرِّقُ بَيْنَهُمَا وَالْغَرَضُ (۲) مِنْ صَنَاعَةِ الْجَدَلِ اِلْزَامُ

سره دقيق نظر لرونکو په نزد فرق کوي او غرض دصناعة الجدل مقابل لره

اَلْخَصْمِ اَوْ حِفْظُ الرَّايِ. **فصل** : اَلْقِيَاسُ (٣) الْخَطَابِيْ قِيَاسٌ مُفِيْدٌ

چپ کول او الزام ورکول دي او دخپل رائي حفاظت کول دي. قیاس خطابي مفید دظن

لِلظَّنِ وَمُقَدِّمَاتٌ مَقْبُوْلَاتٌ مَاخُوْذَاتٌ مِمَّنْ يُحْسَنُ الظَّنُ فِيْهِمْ

دي او ددي مقدمات مقبول او د خلقو په نزد حاصل شوي وي چه گمان نبائسته کوي

كَالْاَوْلِيَاءِ وَالْحُكَمَاءِ.

لکه اولیاء حکماء.

(۱)قوله " القیاس الجدلي" قیاس جدلي عَلَي سبیل الشهرت به فتحي سره دي ددي اجزاء مشهوره یامسلمه کیدل ضرور نه مشهور وي دا هغه قضایا دي کوم چه فیمابَیْنَ الناس مشهور دي په کوم کښي چه اختلاف زمان او مکان او اختلاف اقوام دوجه نه اختلاف او تبدل وي او مسلمه هغه قضایا دي کوم چه تسلیمیو او کوم چه صادق هم وي او کاذب کله او کله د دویم فریق په نزد مسلم نه وي مگر چونکه یو فریق هغه تسلیموي دي دپاره ددي مسلمانونه دقیاس تعبیر کوي او نتیجه په لاس راوړي او خصم ته الزام ورکوي او ددي نتیجه صدق کیدل هم ضروري نه وي.

**فائده** : په مشهوراتو او اولیاتو کښي ډیر وخت التباس واقع کیږي حالانکه مشهورات کله کله باطل کیږي هم او اولیات تل همدغه په حق سره وي مثلا لکه اوگوري الصدق منج من النار والکذب ملق في النار دا مشهورات شرعیه دي مگر معتزله دهوکه اوکړه اوداسي په اولیاتو کښي شمار کړل لِهٰذَا ما به الفرق بَیْنَ المشهورات والا ولیات ځان پوهه کړه او هغه دادي چه تاسو په کومه قضیه کښي مشهورات کیدل اویا اولیه کیدل معلومول پکار دي صرف دعقل نه یي طلب کړي او ددي نه غیر اشهوت

وغیرنه قطع نظر اوکړي او دا که چرې عقل تسلیم کړي نو هغـه بـه لویـه وي مثلا الصدق منج من النار والکـذب ملـق في النـار دا صرف دعقـل نـه اودشروع داخبار قطع نظر اوکړي نو عقل به ددې دصدق او کذب بنـودنه اونکړي او لکل قدم مشهورات نه ددې بیان کړي دي.

(۲) قوله''والغرض من صناعة الجدل'' صناعة الجدل هغه ملکه ده کومه چه دقیاسات جدلیه دتالیف کولو په ذریعه باندې قدرت لري.

فائده: صنعة الجدل سائل الزام ورکولو دپاره استعمالیږي کومه چه دمقدمات مسلمه عِنْدَالخصم تالیف کول او خصم ته الزام ورکولو دپاره قضایا مشهوره دي او دا کله په حق باندې وي او کله په باطل.

(۳) قوله"القیاس الخطابي، قیاس خطابي هغه دي کوم چه دمقدماتو مقبوله یامظنونه نه مرکب وي داقیاس دواعظانو په کلام کښې موندل کیږي کوم چه ترغیب الحسنات اوترهیب لمنع السیئات دپاره استعمالوي او تهذیب للاخلاق (یعني داخلاقو دښائسته کولو دپاره) تعلیم ورکوي دیته قیاس تمثیلي هم ویلي کیدي شي او استقراء هم بلکه قیاس فاسد هم پدې شرط چه مظنون الانتاج وي او ددې عبارت ظاهر الدلالت وي دکوم نه چه اوریدونکي مقصد اومطلب اخستي شي او ددې په نتیجه دده تسلي وشي.

فائده: مقدمات مقبوله هغه دي کوم چه د اکابر وو فرمودات وي کـوم چـه به علم او حکمت لویان ګنړي او د دوي دکرامات اوتقدس دوجې نه (لکـه اولیـاء کـښي) اویـا د دوي دریاضـت في الْعُلُـوْم دوجي نـه (لکـه عطـا او حکماء) اومقدمات مظنونه هغه دي کوم کښي چه اتباعا للظن یـو طـرف ته راجح کیدو عقل حکم کوي حالانکه جانب مخالف هم احتمال لـري لکه زید یطوف باللیل مختفیا وکل من یطوف باللیل مختفیا فَهُوَصادق فزیـد

صادق.

**فائده**: دي قياس نه قياس خطابي دي دپاره واي چه دا دخطابت طرف تـه منسوب دي ځکه ددي په ذريعه خطاب کوي او سامعين پوهوي.

وَاَمَّا الْمَاخُوْذَاتُ (۱) مِنَ الْاَنْبِيَاءِ عَلَيْهِمْ وَعَلٰي نَبِيِّنَا الصَّلَاةُ

او کوم چه ديپغمبرانو عليهم السلام او زمونږ دنبي صلي الله عليه وسلم نه اخستل

وَالسَّلَامُ فَلَيْسَتْ مِنَ الْخَطَابَةِ اَنَّهَا اَخْبَارَاتٌ صَادِقَةٌ مِنْ مُخْبِرٍ

نقل شوي وي داد خطابت دقبلي نه ندي ځکه چه دا دربښتياؤخبري دي او دصادق مخبر

صَادِقٍ دَلَّ عَلٰي صِدْقِ الْمُعْجِزَةِ وَلَا مَجَالَ

نه چه دهغه په صدق دلالت کوي اوپه معجزه دال دي او دوهم دپاره پدي کښي

لِلْوَهْمِ فِيْهَا حَتّٰي يَتَطَرَّقُ اِلَيْهِ الْخَطَاءُ وَالْخَلَلُ فَالْقِيَاسُ الْمُرَكَّبُ

ګنجائش نشته دي ترديچه دخطا لاري مخه ونيسي اومرکب قياس

مِنْهَا بُرْهَانِيٌّ قَطْعِيُّ الْمُقَدَّمَاتِ اَوْ مَظْنُوْنَاتٌ يَحْكُمُ فِيْهَا بِسَبَبِ

برهاني دي او قطعي المقدمات وي يا ددي مقدمات او مظنونات حکم کوي په سبب

الرُّجْحَانِ وَيَنْدَرِجُ فِيْهَا الْحَدَسِيَاتُ وَالتَّجْرِبِيَّاتُ وَالْمُتَوَاتِرَاتُ

درحجان او پدي کښي حدسيات هم داخل دي او د تجربي او متواترات

الَّتِيْ لَمْ تَبْلُغْ اِلٰي حَدِّ الْجَزْمِ بِسَبَبِ عَدَمِ شُعُوْرِ الْعِلَّةِ اَوْ عَدَمِ

چه دجزم حدته نه وي رسيدلي په سبب عدم شعور دعلت او عدم

بُلُوْغِ عَدَدِ الْمُخْبِرِيْنَ اِلٰي مَبْلَغِ التَّوَاتُرِ وَلِهٰذِهِ الصَّنَاعَةِ مَنْفَعَةٌ

بلوغ عدد مخبرينو نه دمتواتر خبر کولو دپاره او ددي صنعت غټه فايده، ده

عَظِيْمَةٌ فِيْ تَنْظِيْمِ اُمُوْرِ الْمَعَاشِ وَتَنْسِيْقِ اَحْكَامِ الْمَعَادِ

په نظم كولو دامور معاش كښې او ترتيب داحكامو دمعادكښې

اَمَّا بِاِسْتِعْمَالِهَا اَوْ بِالْاِحْتِرَازِ عَنْهَا وَلِذٰلِكَ كِبَارُ الْحُكَمَاءِ

اويا اجتناب كول ورنه او پدې وجه به حكماؤ دغه

يَسْتَعْمِلُوْنَ تِلْكَ الصَّنَاعَةَ كَثِيْرًا وَّيَعِظُوْنَ بِالْكَلَامِ الْخَطَابِيِّ

صنعت استعمالولو او په كلام خطابي سره ته خطاب كوې ،

جَمًّا غَفِيْرًا وَلَا بُدَّ اَنْ تَكُوْنَ الْمُقَدِّمَاتِ الْمُسْتَعْمَلَةِ فِيْهَا مُقْنِعَةً

او لابدي ده چه كوم مقدمات پدې كښې درج او مستعمل شوي دي سا معينو ته

مُفِيْدَةً لِلْوَاعِظِيْنَ. **فصل** : اَلْقِيَاسُ الشِّعْرِيْ قِيَاسٌ

كفايت لرونكې دي او واعظانو ته فايده وركوونكي دي.فصل: قياس شعري هغه

مُؤَلَّفٌ مِنَ الْمُخَيَّلَاتِ الصَّادِقَةِ اَوِالْكَاذِبَةِ الْمُسْتَحِيْلَةِ اَوِ

قياس دي كوم چه د دروغو يا رښتيا خيالي خبرو نه جوړ شوي وي برابره خبره ده چه

الْمُمْكِنَةِ الْمُؤَثِّرَةِ فِي النَّفْسِ قَبْضًا وَّبَسْطًا وَالنَّفْسُ مُطَاوِعَةٌ

دمحالاتو نه وي يا دممكناتو نه وي پدې شرط چه نفس كښې دقبض يابسط اثر

لِلتَّخْيِيْلِ كَمُطَاوِعَتِهٖ لِلتَّصْدِيْقِ بَلْ

لرونكي وي او نفس تخييلي ته هم خوښ وي لكه دتصديق دپاره خوښ شوي وي بلكه

ددې نه هم سخت دي او غرض ددې صنعت نه چه نفس په ويره

اَشَدَّ مِنْهُ وَالْغَرَضُ مِنْ هٰذِهِ الصَّنَاعَةِ اَنْ يَّنْفَعِلَ النَّفْسُ

بِالتَّرْغِيْبِ وَالتَّرْهِيْبِ وَاشْتَرَطَ فِي الشِّعْرِ اَنْ يَّكُوْنَ الْكَلَامُ

يا په شوق سره وكړې او شعور په شعر كښې شرط دي چه دا كلام به

جَارِيًا عَلَي قَانُوْنِ اللُّغَةِ.

دلغت د قانون مطابق جاري وي.

(۱)قوله " واما الماخوذات" الخ، مؤلف ددي ځاي نه ددي ښودل اوبيانول غواړي کومي قضي او مقدمات چه انبياء نه ماخوذ وي هغه مکمل يقيني وي دخطا وخنل پدي کښي دضد نه وي او وهم ته پدي کښي ځاي نه وي کومو خلقو چه دغه قياسات کومو مقدمات چه مَوْجُوْدٌ من الانبياء نه مرکب دي په خطابت کښي داخل دي دا په سخته غلطي دي لولا اذ سمعتوموه قلتم مايَکُوْنُ لنا ان نتکلم بهٰذَاسبحانك هٰذَابهتان عظيم، يعظکم الله ان تعودوا لمثله ابدا دا خومره غټ ظلم دي چه حکماء اوفلاسفه خبرو ته يي دالله تعالي منتخب او دپيغمبرانو ارشادات مبارکه سره برابري کړي دي پيغمبر پيغمبر دي دامت محمديه او بيا دمکاشفات هم ربنتيني او صادق دي خصوصا مکاشفات شيخ اکبر ورزقنا حظا وافرا من علومه ومعارفه امين.

مُشْتَمِلًا عَلَي(۱) اِسْتِعَارَاتٍ بِدِيْعَةٍ رَائِقَةٍ وَتَشْبِيْهَاتٍ اَنِيْقَةٍ فَائِقَةٍ

او په استعاره مشتمل وي او تشبيهاتو ته مشتمل وي پدي شان سره چه په نفس کښي

بِحَيْثُ يُؤَثِّرُ فِي النَّفْسِ تَاثِيْرًا عَجِيْبًا وَيُوْرِثُ فَرَحًا وَيُوْجِبُ فَرَحًا

عجيب تاثير وکړي او خوشحالي او سکون ورته ورکوي

وَمِنْ ثُمَّ لَا يَجُوْزُ فِيْهِ اِسْتِعْمَالُ الْاَوَّلِيَاتِ الصَّادِقَةِ

ددي وجه نه پدي کښي اوليات صادقه استعمالول جائز نه دي

وَيُسْتَحْسَنُ (۲)اِسْتِعْمَالُ الْمُخَيَّلَاتِ الْكَاذِبَةِ كَمَا قَالَ الْعَارِفُ

او خيالات کاذبه هم ښائسته کوي لکه عارف لکهنوي وئيلي دي

اللَّكْنَوِيْ مُخَاطِبًا لِوَلَدِهِ وَفَلْذَةِ كَبِدِهِ، بيت:

به وخت دخطاب كښې خپل خوي ته

درشعر مپیچ و درفن او چون اکذب ادست احسن او

داخبره انغبنتلي شوي ده چه دروغ هم ددي ربنتیا دي.

او يو شاعر وئيلي دي شعر:

وَكَقَوْلِ(٣) الْقَائِلِ يَصِفُ الْخَمْرَ:

يالكه شاعردشرابو صفت بيانوي.

لَهَا الْبَدْرُ كَاسٌ وَهِيَ شَمْسٌ يُدِيْرُهَا
هِلَالٌ وَكَمْ يَبْدُو إِذَا مَزَجَتْ نَجْمٌ

دي محبوبي ته دشرابو كاسه لكه دنمر پشان ده چه ورنه تاويږي او سپوږمۍ ده ديروختونه شراب چه كوم څه شي نه خالي شي نو ستوري ښكاره شي.

وقول الشاعر، شعر:

لَا تَعْجَبُوْا مِنْ (٤) بَلَي غَلَالَتِهِ قَدْ زُرَّ أَزْرَارُهُ عَلَي الْقَمَرِ

دمحبوب دبدن نه تعجب مه كوي چه شليدلو جامو نه يې بدن ښكاري ددي قميص داسي ښكاري لكه چه په سپوږمي راښكلي شوي وي.

فَشَبَّهَ الْمَحْبُوْبَ بِالْقَمَرِ وَقَالَ لَا تَعْجَبُوْا مِنْ إِنْشِقَاقِ غَلَالَتِهِ

محبوبه يې دسپوږمي سره مشابه كړي ده او وئيلي يې دي ددي دچمك دمك نه تعجب مه

لِأَنَّهُ قَمَرٌ زَرَّ عَلَيْهِ الْغَلَالَةُ وَكُلُّ قَمَرٍ كَذٰلِكَ فَغَلَالَتُهُ تَنْشَقُّ

كوي ځكه چه دا خو سپوږمي ده اګر كه په جامو يې كرښې دي او هره سپوږمي همداسي

يَنْتَجُ غَلَالَةُ الْمَحْبُوْبِ تَنْشَقُّ وَقَدْ يَنْتَجُ

وي نو دا جامي څيري کيږي دا نتيجه ورکوي چه محبوبي اغوستلي جامي ښکلي دي اګرکه

اِجْتِمَاعُ النَّقِيْضَيْنِ نَحْوَ اَنَا مُضْمَرُ الْحَوَائِجِ بِاللِّسَان مَظْهَرَهَا

شليدلي دي، او کله نتيجه اجتماع دنقيضنو ورکوي زه دژبي نه پټ شوي يم او به ستركو

بِالْمَدَامِعِ وَكُلُّ مُضْمِرِ الْحَوَائِجِ صَامِتٌ وَكُلُّ مُظْهِرِهَا مُتَكَلِّمٌ

کښي ښکاره شوي يم او هر څوک چه دحاجتونو نه پټ شوي وي دا چپ دي او هغه پرده

يَنْتَجُ اَنَا صَامِتٌ وَلَا يَشْتَرِطُ(٥) الْوَزْنُ فِي الشِّعْرِ عِنْدَ اَرْبَابِ

او دي وائي زه چپ يم او په شعر کښي وزن شرط ندي دعلماؤ

الْمِيْزَانِ نَعَمْ يُفِيْدُهُ حِسًّا وَالْكَلَامُ الشِّعْرِيْ ٦) اِذَا اَنْشَدَ بِصَوْتٍ

منطق په نزد دا منه چه دحسر فائده ورکوي او کلام شعري چه کله ښائسته وي په ښه

طَيِّبٍ اِزْدَادَ تَاثِيْرُهُ فِي النُّفُوْسِ حَتّٰى رُبَمَا يُزِيْلُ فَرْطُ الْبَهْجَةِ

اواز سره نو په نفسونو کښي تاثير نور هم زياتوي ترديٍ چه ډير وخت خوشحالي

الْعَمَائِمِ عَنِ الرُّؤُوْسِ وَالْاَوَائِلِ مِنَ الْحُكَمَاءِ الْيُوْنَانِيِّيْنَ

کوونکي پټکي يي هم راښکته کوي دسرونو نه او ديو نان اولني حکماء

كَانُوْا اَحْرَصَ النَّاسِ عَلَى الشِّعْرِ.

په شعر زيات حريص وو.

(١) قوله"عَلَى استعارات الخ، استعاره په لغت کښي ديوشي غوښتل ته ويل کيږي مګر دلته داستعاري مراد دادي چه يو شي ته دبل شي سره تشبيه ورکړي مګر تشبيه مذکوره نه وي وهٰذَاالقدرلَيْسَ بكاف لتعريف الاستعاره ولايحتمل المقام تفصيله فان شئت الاطلاع عَلَيْهِ فارجع الي

المطولات الاصول وعلم البیان.

(۲)قوله " ویستحسن، دا مطلب دي چه په شعرونو کښې خیالات کاذبه استعمال زیات پسند کیږي ځکه چه دتصدیقاتو نه نفس دومره نه متاثر کیږي څومره چه د دروغو خبرونه متاثر کیږي دي دپاره دبزرګانو معقوله ده چه احسن الشعر اکذبه په شعرونو کښې هغه دي کوم چه ډیر دروغژن وي.

او(۳) قوله"وکقول القائل مؤلف دمثال په طور دتخییلات کاذبه دوه شعرونه پیش کوي اولنی شعر دادي.

لها البدرکاس وَهِيَ شمس یدیرها هلال وکم یبدو اِذَامزجت نجم

ترجمه: دشرابو دپاره بدر (دڅوارلسمي سپوږمي) پیاله ده او شراب نمر دي کوم چه سپوږمي تتوي اوډیر وخت چه دوي په شرابو کښې یوځاي کیږي نو ستوري ښکاره کیږي دلته شاعر شراب ته نمر جوړکړي اوبدرپي دډکې پیالي سره اوهلال دپیالي سره مستعارکړي اوشراب په اوبو کښې دیوځاي کولو وخت کله چه بلبلي پاڅیږي دیته ېي دستارو سره تشبیهه ورکړي ده وکذبه لایخفي عَلَیٰ احد، للخمروهي ان الخمر یدیرها یعني الخمر هلال فاعل یدیرها داقول نجم فاعل یبد وقوله مزجت ضمیرالمؤنث راجع الي الخمر اودویم شعر دادي.

لاتعجبوا من بلي غلالته قدزرا زاده عَلَیٰ القمر

ترجمه: اذما دمحبوبي دخندانه تاسي تعجب مه کوي ځکه چه دهغي صدف په سپوږمي لریدلي دي واٸي چه دایو خالي قسم کپړه ده کوم چه دسپوږمي درنړا نه چمك وَهِيَ اءس دشاعر دخیال هواکول اوګوري چه محبوبه دسپوږمي قرار ورکړي دي چه ددي دقمیص او جامي بتني رنړا سپوږمي هم

نشي برداشت کولي نو اوس چه کله عين سپوږمي ديته اغوستي ده نو پدي باندي څه تعجب ناسي کوي.

(٤)قوله " من بلي: دبلي نه جامه ده ازار غلالته مايلبس تَحْتَ الثوب يعني چه دجامو لاندې يې اچوي هغي ته ازار وايي بتني.

عَلَيَّ القمر يعني محبوبه باندي حاصل دادي چه په ټولو شعرونو کښي د دروغو اشعار ډير خوښيږي.

(٥)قوله " ولايشترط الوزن" يعني اهو منطق صرف تخيلات اوتشبيهات تاليف ته قياس شعري وائي ددوي په نزد دمنطقي کيدو سره دشعرموزون او مقفي کيدل شرط ندي.

(٦) قوله"والکلام الشعري، دامطلب دي چه کلام شعري في نفسه مؤثر في النفوس وي او که په ښائسته اواز سره اوويل شي او واوريدل شي نو ددي ډير اثر وي ، دانسان نه علاوه په نورو حَيْوَانَاتو هم مؤثر ثابت کيږي لکه داوښ خاوند دارزانه اوښ هم مخمور کيږي او دعربو دپهلوانانو قاعده داده چه اشعار به يې ويل او اورول اوخپل ځانونه به يې په خطره کښي غورزول اوس هم دجنګ په وخت کښي دګانو بجانو اهتمام کولي شي.

## فصل

اَلْقِيَاسُ السَّفِطِي (١) هُوَ قِيَاسٌ مُرَكَّبٌ مِنَ(٢) الْوَهْمِيَاتِ الْكَاذِبَةِ

سفسطي هغه قياس دي کوم چه د درغوو مقدمو نه جوړشوي وي

الْمُخْتَرَعَةِ لِلْوَهْمِ (٣)کَقِيَاسِ غَيْرِ الْمَحْسُوْسِ عَلَى الْمَحْسُوْسِ

او دخانه جوړي شوي وي او وهمونه وي لکه قياس کول دمحسوس په غير محسوسو سره

نَحْوَ كُلُّ مَوْجُوْدٌ مُشَارٌ إِلَيْهِ مُشَابَهَةٌ شَدِيْدَةٌ بِالْأَوَّلِيَاتِ وَلَوْلَا رَدُّ

لکه دهرمَوْجُوْدُ طرف ته اشاره کیږي او دوهمیاتود اولیاتو سره ډیرسخت مشابهت دي

الْعَقْلِ وَالشَّرْعِ حَكَمَ الْوَهْمُ لَدَامَ الْإِلْتِبَاسُ بَيْنَهُمَا أَوْ مِنَ

کچرې عقل او شریعت وهمونه نه وو رد کړي نو د دواړوترمنځه به شك همیشه وو

الْكَاذِبَةِ الْمُشَبَّهَاتِ بِالصَّادِقَةِ وَهِيَ قَضَايَا يَعْقِدُهَا الْعَقْلُ بِأَنَّهَا

همدغه قضیه ده چه عقل یې منعقد کوي خکه چه دا

أَوَّلِيَّةٌ أَوْ مَشْهُوْرَةٌ أَوْ مَقْبُوْلَةٌ أَوْ مُسَلَّمَةٌ لِمَكَانِ(٤) الْإِشْتِبَاهِ بِهَا

اولیه او مشهوره ده او مقبوله اومسلمه ده دوجي دلفظي مشابهت نه دلفظ په لحاظ سره

لَفْظًا أَوْ مَعْنًى فَتَوَقَّعَ فِي الْغَلَطِ وَهٰذِهِ (٥) الصَّنَاعَةُ كَاذِبَةٌ مُمَوَّهَةٌ

اویادمعني په لحاظ سره نویه غلطي کښي واقع کیږي او دغه صنعت کاذبه دي اووهم

(٦) غَيْرُ نَافِعَةٍ بِالذَّاتِ نَعَمْ نَافِعَةٌ بِالْعَرَضِ بِأَنَّ صَاحِبُهَا لَا يَغْلِطُ

دي اونافع ندي البته دغرض سره نافع دي چه صاحب به یې نه خان اونه بل ته مغالطه

وَلَا يُغَالِطُ وَيُقَدَّرُ عَلَى اَنْ يُّغَالِطَ غَيْرَهُ أَوْ يَمْتَحِنَ بِهَا أَوْ يُعَانِدَهُ

ورکوي اوبل دا چه په دي سره امتحان کښي واقع کیږي یا ورسره عناد کوي

وَ صَاحِبُ(٧) هٰذِهِ الصَّنَاعَةِ اِنَّ قَابِلِ الْحُكْمِ يُسَمِّي سُوْفِسْطَائِيًّا

او ددي فن صفت کوونکي په حکماؤ سره شهرت لري او دا سوفسطایي دي

وهٰذِهِ الصَّنَاعَةِ سِفْسْطَةِ اَيْ حُكْمُهُ مُمَوَّهَةٌ مَلْمَعَةٌ وَاِلَّا فَيُسَمِّي

یعني حکمت مموهة ملمعه ، او که داسي نوي نو دا دمشاغبي په نوم سره مسمي دي

مُشَاغِبِيًّا وَهٰذِهِ مُشَاغَبَةٌ وَعَلَي التَّقْدِيْرَيْنِ فَصَاحِبُهُ مُغَالِطٌ

او بنا په دواړو تقدیرونو ددي صنعت والا غلط دي اوبل ته دهوکه ورکوونکي دي

فِيْ نَفْسِهِ مُغَالِطٌ لِغَيْرِهِ وَصَنَاعَتُهُ مُغَالِطَةٌ وَهِيَ قِيَاسٌ فَاسِدٌ

في نفسه بل لره دوكه وركونكي وي اووده عمل هم دوكه ده او دا قياس فاسددي

اِمَّا مِنْ (٨) جِهَةِ الْمَادَّةِ فَقَطْ اَوْ مِنْ جِهَةِ الصُّوْرَةِ فَقَطْ

باصرف دمادي په لحاظ سره او يا صرف دصورت په لحاظ سره فقط

اَوْ كِلَيْهِمَا. **فصل** : فِيْ اَسْبَابِ الْغَلَطِ اِعْلَمْ اَنَّ اَسْبَابُ الْغَلَطِ مَعَ

او يا دواړه.فصل: په بيان داسبابو دغلط كښې، پدې پوهه شه چه اسباب دغلطي سره

كَثْرَتِهَا رَاجِعَةٌ اِلَى اَمْرَيْنِ اَحَدُهَاسُوْءُ الْفَهْمِ فَقَطْ وَثَانِيْهِمَا

دډيروالي دوه امرونو ته راجع دي يو په دوي كښې سوء فهم دي فقط،دويم

اِشْتِبَاهُ الْكَوَاذِبِ بِالصَّوَادِقِ.

اشتباه كول د دروغ ويونكو په رښتيا ويونكو.

(١)قوله " السفسطي" دانوم دسوف اسطاطرف ته منسوب دي دا دواړه يوناني لفظونه دي سوف په معني دحكمت او اسطا په معني دتلبيس فريب وركول يعني اسفسط معني حكمت ملتبس شوه.

(٢)قوله " من الوهميات، وهميات هغه قضايا كاذبه دي كوم چه دانسان دوهم نه جوړيږي.

(٣)قوله " والوهم" وهم ته سلطان القوي الجسمانيه اومخدوم القوي الجسمانيه ويل كيږي كوم چه په اكثر قضايا او احكام كښې دعقل مقابله كوي اونفس په غلطي اومغالطه كښې اچوي عقل كه چرې دا دفع نكړي او دشريعت مقدسه رڼا كښې نه وي نو انسان دوهمياتو نه نجات نشي موندي اوپه وهمياتو او اولياتو كښې امتيازو فرق نشي كولي دوهمياتو دغلبي نه نجات نشي موندي ومن الله الاستعانة.

او(٤) قوله "لمکان الاشتباه بها لفظاً اومعناً" دا شتباه لفظي مثال داسي لکه هٰذِهِ عين وکل عين يضيءُ العالم او ددي نه مراد نمر دي مخاطب داوبو چينه معلوموي او ددي نتيجه راوباسي او داشتباه معنوي مثال داسي لکه چه وائي هٰذَافرس وکل فرس صاهل او دده اشاره په اس حقيقي پس ده مکر دسامع دمنقش تصوير په ديوال طرف ته کوي اونتيجه راوباسي.

(٥)قوله " وهٰذِهِ الصناعة" الخ، دا مطلب دي چه قياس سفسطي دروغ وي دکوم چه ظاهر ښه وي مکر دهغي باطن اونتيجه فاسده وي دي وجه نه ديته مزخرفه وائي دا قياس بالذَّاتِ مفيد ندي البته بالعرض ددي دا فائده ده چه پدي ذريعه سره دخصم مقابله نه بچ کيدي شي او په فاسد اوغلط قياس کښي امتياز کيدي شي او همدارنکه دويم ته مغالطه ورکول کيږي او دحضم امتحان هم اخستي شي اودحضم معاندي دعناد جواب هم ورکولے کيدے شي.

(٧)قوله " مموهة من التمويه وَهُوَ جعل ظاهرالشيء حسينا مع کون باطنه قبيحا.

(٧)قوله "صاحب هٰذِهِ الصناعة" دا مطلب دے چه دقياس سفسطي په ذريعه کله حکميه مستدل مقابله کولي شي کله چه ددي قضايا مشابه باالاوليات وي دغه وخت دغه قياس ته سفسطه او ددي مؤلف ته سوفسطائي ويل کيږي او کله دغه قياس استعمال غير حکيم مقابله کولي شي دغه وخت ديته مشابه ويل کيږي او ددي مؤلف ته شاغبي ويل کيږي مشابغت يوبَلْ سره جکړو ته ويل کيږي.

(٨)قوله " اما من جهة المادة دمغالطي محلور سببونه دي، اول سبب فاعلي دادعقلي ناقص لرولو سره وهم اوفهم غالب وي، دويم سبب غائي دمرتبې.

طلب اوشهرت بَيْنَ الناس دي اومغالطه غواړي چه عوام دي ځما اهتمام وکړي، دریم سبب صوري اودا هغه دروغ اوخیانت اوفریب دي، څلورم سبب مادي یعني یعني کوم قضایا چه کاذبه مشابه بالصادقه وي.

وَالْاَوَّلُ اِنَّمَا بِسَبَبِ اِنْغِمَاسِ (۱) النَّفْسِ فِيْ ظُلُمَاتِ الْوَهْمِ حَتّٰي

اولني قسم یعني غلط فهمي صرف دهغه سبب په وجه وي چه نفس د وهم په تیارو

يَسْتَيْقِنَ الْكَوَاذِبَ صَادِقَةً بَلْ

کښي دومره اندازه دوکه شي چه په دروغو مقدماتو باندي دربنتیا یقین وکړي بلکه

ضَرُوْرِيَّةً نَحْوُ كُلُّ مَا لَيْسَ بِمُبْصِرٍ لَيْسَ بِجِسْمٍ فَالْهَوَاءُ لَيْسَ بِجِسْمٍ

ضرور داسي وکړي لکه چه یو هم په نظر نه راځي هغه جسم نه دي پس هوا جسم نه

وَاَمَّا الثَّانِيْ فَفِيْهِ تَفْصِيْلٌ عَلٰي مَا سَيَاْتِيْ وَقَالَ بَعْضُ الْمُحَقِّقِيْنَ

دي دویم قسم کښي تفصیل شته دي او ځنو محققینو وئیلي دي چه

تَرْجِعُ اِلٰي اَمْرٍ وَاحِدٍ وَهُوَ عَدَمُ التَّمِيْزِ بَيْنَ الشَّيْءِ

د دروغو اسبابو رجوع صرف دیو امریه طرف رجوع ده هغه عدم تمیز د دوه شیانو

وَشِبْهِهٖ فَقَطْ. **فصل** : عَدَمُ التَّمِيْزِ بَيْنَ الشَّيْءِ وَشِبْهِهٖ يُنْقَسَمُ اِلٰي

عدم تمیز په مینځ دشي او دهغي دمشابهاتو سره تقسیمیږي په

مَا يَتَعَلَّقُ بِالْاَلْفَاظِ وَ اِلٰي مَا يَتَعَلَّقُ بِالْمَعَانِيْ

هغه پوري کوم چه تعلق لري په الفاظو پوري اوپل هغه کوم چه تعلق لري په معناګانو

اَلْقِسْمُ الْاَوَّلُ اَعْنِيْ مَا يَتَعَلَّقُ بِالْاَلْفَاظِ قِسْمَانِ الْاَوَّلُ مَا يَتَعَلَّقُ

پوري اولني قسم یعني هغه چه الفاظو پوري تعلق لري په دوه قسمه دي اول هغه چه په

بِالْفَاظِ مِنْ جِهَةِ التَّرْكِيْبِ وَالثَّانِيْ مَا يَتَعَلَّقُ بِهَا مِنْ حَيْثُ

الفاظو بوري به لحاظ دتركيب سره تعلق لري، دويم هغه چه تعلق دتركيب به لحاظ سره

التَّرْكِيبِ ثُمَّ الْمُتَعَلِّقُ بِالْأَلْفَاظِ مِنْ جِهَةِ الْأَوَّلِ قِسْمَانِ الْأَوَّلُ مَا

بيا دغه اولني قسم متعلق داول جهت دوه قسمه دي اول هغه چه تعلق به الفاظو پدي

يَتَعَلَّقُ بِالْفَاظِ اَنْفُسِهَا وَذٰلِكَ بِاَنْ تَكُوْنَ الْاَلْفَاظُ مُخْتَلِفَةً فِي

بنفسه لري او دا دادي ,چه الفاظ به دلالت كښي مختلف وي پدي

الدَّلَالَةِ فَيَقَعُ فِيْهِ الْاِشْتِبَاهُ فِيْمَا هُوَ الْمُرَادُ كَالْغَلَطِ الْوَاقِعِ بِسَبَبِ

دلالت كښي اشتباه واقع كيږي به مراد كښي لكه غلط چه واقع شي به سبب

كَوْنِ اللَّفْظِ مُشْتَرَكًا لَفْظِيًّا بَيْنَ مَعْنَيَيْنِ اَوْ اَكْثَرَ وَكَوْنُ اَحَدِ

دبودن دلفظ چه اشتراك لفظي وي په مينځ د دوه معناګانو كښي يا زياتو كښي

مَعَانِيْهِ حَقِيْقِيًّا وَالْاٰخَرُ مَجَازِيًّا وَيَنْدَرِجُ فِيْهِ الْاِسْتِعَارَةُ وَاَمْثَالُهَا

چه يوبه حقيقي اوبل به مجازي معني وي او پدي كښي استعاره او ددي امثال

وَكُلُّ ذٰلِكَ يُسَمّٰى بِالْاِشْتِرَاكِ اللَّفْظِيِّ كَمَاتَقُوْلُ لِعَيْنِ الْمَاءِ

داخل دي او دا ټول داشتراك لفظي به نامه مسمي دي لكه چه ته واﺋي چينه د اوبو

هٰذِهٖ عَيْنٌ وَكُلُّ عَيْنٍ يَسْتَضِيْءُ بِهَا الْعَالَمُ فَهٰذِهِ الْعَيْنُ يَسْتَضِيْءُ بِهَا

داعين دي او هره چينه رڼا وركوي به عالم ته نوداچينه يعني عين عالم ته رڼا وركوي

الْعَالَمُ اَوْ تَقُوْلُ زَيْدٌ اَسَدٌ وَكُلُّ اَسَدٍ لَهٗ.

يا وايي . بد اسددي او دهر اسد.

(۱) قوله"بِسَبَبِ الغماس النفس" الخ، دسوفهمي سبب دوهم تاريكي. كښي ډوبيدل دنفس بنديدل او دوهم په عقل باندي غالب را تلل دي دكوم نتيجه كښي چه بحرالاغلاط (دغلطي په درياب كښي) دانسان فهم

